# د عبدالرحمان بابا دیوان

**دوهمه بڼه**

محترمه لوستونکیه:
السلام علیکم.
خوښ یم چي د پښتون قوم ددې ستر عارف شاعر، جامِع دیوان تاسو ته وړاندي کوم. عبدالرحمن بابا نه یوازي په موږ حق لري چي ویې پیېژنو او شعر یې ولولو، بلکه دا د هر چا حق دی چي د بابا له نصیحته ډک کلام وروړسیږي. پدې دیوان کي د عبد الرووف بېنوا صاحب، تبسم صاحب، حبیب الله رفیع صاحب، غروال صاحب او نورو له لیکل شویو دیوانونو څخه، اخیسته او سره پرتله شویدي. څکه نو په یوه ځای کي به دوه ډوله لیکنه شوې وي، او په (/) علامه، سره جلا شوېدي. پوهاند دي خپل نظر را واستوي چي کوم ټکی یې باید انتخاب شي. هڅه شوېده چي د افغانستان په مرکزي معیاري پښتو باندي ولیکل شي (ترڅو یې ویل و ټولوته آسانه وي).
ستاسو په مرسته به دا دیوان په راتلونکي کي په لا غوره توګه وړاندي شي. زه د ادبیاتو مسلکي نه یم، یوازي مې ځان دغه کار ته مجبوره بللی. په هره برخه کي چي غلطیاني وینئ، مهرباني وکړئ را په ګوته یې کړئ.
هغوي چي غواړي ددې دېوان په سمون کي برخه واخلي، هغوي ته یې سافت کاپي (په ایم ایس ورډ کي) هم استوم.

ډاکټر محمد هاشم نظروال
+16477701013
mnaz@proton.me

سمومن:الحاج نظرمحمد راغب ۱۴۰۱/۴/۲۱

**ن**



**و**



**اه – تر - څه**

**له  تر  یه**



**ای  تر  دی**

5. دا چې مست په میو راغي یار د چا دی ١٠٧
6. غواصان که گوهر غواړي گوهر دا دی
7. ٧ یو یو داغ په ټټر ایښی د هر چا دی
8. د ساقي په لاس کښې جام د می ناب دی
9. چې تر سنگ و تر آهنه یې زړه سخت دی ١٠٨
10. ستا له لاسه په ما جور دی که داد دی
11. که یې مهر و محبت که یې عناد دی
12. په خاطر باندې مې ستا د غم غبار دی ١٠٩
13. کمیني یو نادر کار دی
14. ستا له غمه مي په سر کښې هسې شور دی
15. زلفي دي له ډېرې درازیه پای تر سر دي
16. دنیا دار که مستغني په سیم و زر دی ١١٠
17. دواړه سترگې مي کړې د ستا په لور دي
18. ستا له غمه مې په سر کښې هسې شور دی
19. که دلدار په دلدارۍ زما قدم ږدي
20. د دنیا کارونه واړه غوُلول دي ١١١
21. سپین رخسار و مشکین خال وبله ضم دی
22. چې د څنگه مي دلبر په لاس کښې جام دی
23. ما دا ستا لمن ته اچولی دا خپل ځان دی
24. په نامه د هغه خدای مې دا بیان دی ١١٢
25. زړه مې ستا په فکر ذکر گلستان دی ١١٣
26. ستا دعشق حرفونه تور نه دي گلگون دي
27. غم دې هسې غلبه شه په ما باندې
28. په دنیا کښې که څه کار دی خو د دین دی ١١٤
29. مخ د یار شمس و قمر درې واړه یو دي
30. چې دا هسې لاس په لاس دنیا پریښودې
31. زه بلبل ستا د وصال یم بوستان څه دی ١١٥
32. خښ مي ستاد ښو غشي په سینه دي
33. د عاشق نظر په خورد و په خواب نه دی
34. د عشق زخم څه د زخم په شان نه دی ١١٦
35. هر نگار چې بې وفا دی نگار نه دی
36. هر نگار چې بی وفا دی نگارندی
37. هغه یار چې بې وفا دی څه یار نه دی
38. عاشقان دې په اور سوي دي که نه دي ١١٧
39. دا ژوندي چه معلومیږي واړه مړ ه دي
40. په ظاهر صورت چه ستا د در گدای دی
41. که مطلب و مدعا د سړي خدای دی
42. که د خلقو و نظر ته آدمی دی ١١٨
43. ستا له غمه مي په مخ باندې ولې دي
44. چا چې کړې و دنیا وته اسرې دي

85. د سکوت په تبغ چې ژبه بريده شي ۱۳۲
86. چې سړی له بله بد وايي بد گوی شي
87. وقت د عيش و طرب تېر شه خزان راغی
88. په اول کې تا د عشق وهلې لافې
89. یا دا ستا چشم و ابرو وینم په خواب کې ۱۳۳
90. ستا د میني گوهر نشته په هر آب کښې
91. زړه مې بايلو ستا په مينه محبت کښې
92. مغرور مه اوسه د عشق په کار و بار کښې ۱۳۴
93. مدام ناست یم وچ گوگل سترگې په نم کښې
94. هسې بې ياره خفه يم په جهان کښې ۱۳۵
95. د بلبل له حاله زده کړه په خزان کښې
96. زړه مې ډوب ډوب کيږي ستادغم په غلبو کښې
97. هسې خوښ يم ستا د در په خاکستاری کښې
98. سپين مخونه تور کودی شي په پيری کښې ۱۳۶
99. چې وصال د خپل جانان مې دی موندلی
100.ما چې سترگې و گلرخ ته واړولې
101.يوځل ولېدای د يار پرېشانې زلفې
102.بد لوی په دنیا دين و ايمان ولې؟ ۱۳۷
103.په نور څه پسې بې خدايه ژاړې ولې؟
104.ته چې خپله بې عقلې هوښیارې بولې
105.هسې ډوب يم ستا د غم په درياب تللی
106.زه د ستا له غمه ژاړم واړه وينې ۱۳۸
107.که يو ځله توری زلفې کړې پريشانی
108.خدای دې وژغوره له هرې پريشانی
109.هر چې کښت يې په باران و په سيلاب وي ۱۳۹
110.تل دې ستا د خواب آلودو سترگو خواب وي ۱۴۰
111.د هغو چې وبله ځبله مهر و محبت وي
112.د هغې بنا چې نوم محنت آباد وي
113.په دنيا کښې که هر څو و بله پيوند وي ۱۴۱
114.که د درستې دنيا غم مې په سر بار وي
115.له هغو سره به څه فکر د يار وي
116.که د ستا د خاطر مينه په اغيار وي ۱۴۲
117.د وصال په هوا والوتی مرغه شوای
118.چې په مخ باندې د اوښکو يو رقم وي
119.همېشه دې زما سر و ستا قدم وي ۱۴۳
120.ته چې ما ته وايې چې په چا باندې شيدا يې
121.هر چې په حيات صورت له مرگ سره اشنا شي
122.چې پخته شي آشنايي
123.که په قطع د تمام جهان ملک يې ۱۴۵
124.مست د هغه مخ يم چې مستانې لرې سترگې

125.خو زما په ورميږه  ماتول شپږ يې
126.په يوه زره به وږى  يا به موړ يې
127.د زړه حال و تا ته څه وايم په ژبه ۱۴۶
128.په ځوانۍ کښې  بد دماغه بد گمان يې
129.زه د ستا له غمه ژاړم واړه وينې
130.ورك شه ورك شه بد  کردار و بد سړى ۱۴۷
131.که له ډيره غمه دم د چا ختى
132.چې دارو د درد و غم وي هغه مى
133.ډيرې خولې زما په ياد شکر خورې شوې
134.بوصلِ تو مارا کجا هاته هې ۱۴۸
135.هغه يار چه ښايسته دى تر آفتابه
136.ستا جفا د حد په هورته ده صنمه ۱۴۹

## ضروري يادونې:

| په شرقي لهجه | په غرۍ لهجه | په شرقي لهجه | په غربۍ لهجه |
|---|---|---|---|
| څما | زما | چرته | چيرته |
| مښک | مشک | چه | چي |
| کا | که، کړ، کړو | ز | ځ |
| ...ې | ...ي | شی | سي |
| د پاره | لپاره | شه | شو |
| د... | له... | کا | کړه، کړي |
| اوښي | اوښکي | کړ | کړو |
| تر... | له... | لنبه | لمبه |
| څبله | چا له | نمر | لمر |
| لنبه | لمبه | ... و ... | ... او ... |
| | | | |

| د ځينو لغتونو معنی | | | |
|---|---|---|---|
| ابته (حبطه) | عبث، بې معنی | اختلاط | ګډون، خبرې |
| ابلق | آس، برَګ | | |
| ارهنډ | بېد انجير | | |
| آدينه | جمعه | | |
| اشراق | د څابښت لمونځ، طلوع کول | | |
| الووې | وريت شوی | | |
| افسون | جادو، ويده، دم شوی | | |
| الغياث | پناه غواړم، فرياد | | |
| الوس (اولس) | ټبر، قوم، طايفه | | |
| آماج | موخه، هدف | | |
| آماس | پړسوب | | |
| اوتاد (د اوتد جمع) | يوه روحاني مرتبه ده. موړي، مېخونه | | |
| اوډنی | يو ډول ښځينه پوړنی دی، غالباً په ودو کي په سرکيده | | |
| اوراد | د وِرد جمع. دعا ګاني | | |
| اورپېښتی | پتنګ، پروانه | | |
| اوړمکه | مياشت، ماه | | |
| اولاق (اولاغ) | خر | | |
| اهاړ | د اوړي د سختي ګرمي موسم | | |
| اهداد (هيداد) | سزا، پاداش، سرزنش | | |
| اياغ | د شرابو پياله او کاسه | | |
| باده | شراب | | |
| باړه | يو مشهور خوَړ دی | | |
| بايي (بهائي) | ورور | | |
| بد سګال | بد ذات، بد جنس | | |
| برنا | ځوان، زلمی | | |
| بساط | د زمکي مخ، فرش | | |
| بطال | بد/باطل/غلط ويونکی، | | |
| بګاړ (بګيار) | لبوه، شرمښ | | |
| بيچاوني (بيچاوڼه) | د عزت جامي، بستره، روجايي | | |
| پارسا | پرهېزګار، زاهِد | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| پارځي | د جوارۍ کولو داني | | |
| پاسلل | سپارل | | |
| پایَله | پایزیب | | |
| پخساک | پرېشاني، غم او خپګان | | |
| پراته | پرته، بې ځایه، بې مورده | | |
| پسندل | غوره کول | | |
| پکو | په ځان پوري تنګ او ستړی | | |
| پنهم | پنهان، پټ | | |
| پېځل | زغمل، تحمل کول | | |
| پیچومي (بچوي) | د مچنوغزي پړی (بچوکی). مجازاً اوږدې څڼې او ګوڅۍ | | |
| پیړۍ | د کېناستو تخته، د ناستي کټګی، کټخی | | |
| پېشاب | مِتیازي | | |
| تبرا | بېزارېدل، ټېرا کېدل | | |
| تراړه | تیږه، کاڼی، ډبره | | |
| تراهي | وېره | | |
| ترو | نُو | | |
| توسن | نیلی | | |
| تولا | محبت، دوستي، رښتینګلوي، مینه | | |
| تېزل | ځغلول، پرې سپرېدل | | |
| ټوکرکی | د پوزي یوه ټوټه یا ټوټکی | | |
| ټنډ | په زړه موړ، سخت، محکم | | |
| چلیکار | هغه کروندګر چي په ټاکلې برخه، یا مزدوري د چا ځمکه کري | | |
| چندڼ | صندل | | |
| چوړۍ | چوړۍ، چواړۍ | | |
| چوک | یو کم شی، لږ څه | | |
| چوګان | نېزه، ډډی، یا توبا ډنډه | | |
| چووه | عطر، خوشبویه مواد | | |
| حط | ایسته کول، د یو بار کوزول | | |
| خاصا | نېک خویه، وتلی | | |
| خاکروب | جارو کښ | | |
| ختول | ختِه لرونکی، ناپاک | | |
| خپسر | خپل ځان | | |
| خدنګ | غشی، خندق | | |
| خراړه | یو ډول دښتي وړه مرغۍ | | |
| خرام | ناز او نِزاکت(لرونکی تګ) | | |
| خمر | شراب، مُل | | |
| خمسور | همراز، همراه | | |
| څښکو | چشکو یو بوټی چي د لېچنو سترګو دعلاج لپاره پکي اچول کېږي | | |
| څړۍ | د ګېَرۍ د سر اوږده وېښتان | | |
| څلي څولي | ګنډه ګونډه، زوړ سامان، ګند او کچکول | | |
| ځبله | سره، یو له بله | | |
| دد | ځناور | | |
| ډښن | دښمن | | |
| دراج | تَنځری (یو مرغه دی) | | |
| درای | ږغږغی، ګونګرو، ژرژری، جرس | | |

| دلق ارزق فام | زرغون کند، ګودړی | | |
|---|---|---|---|
| دواب | ځاروي، څلوربولي، بوده ګان | | |
| دوځار | څرګند، ښکاره، ورمخامخ، دچار | | |
| دیبا | وریښمین ښکلی ټوکر، میلک | | |
| ډبر | تباه، ټبر، کهول | | |
| ډلیال | د ډلي ملګری | | |
| راج | راجا (واکمن) | | |
| راح | خوښي، نشاط، مجازاً شراب | | |
| رتی | ډېر لږ، نا څیز، کم وزنه شی | | |
| رسن | رسی، تناو | | |
| رصاص | قلعي، سرپ | | |
| رعنا | ښکلی او متناسب اندام | | |
| رنځړی | رنځور، ناروغ، علیل، مجازاً زېړ رنګی | | |
| رېمن | خیرن، بد رنګ، ناولی | | |
| زباد | اثبات | | |
| زبر | یاد، په یاد | | |
| زمول | مړاوی، بې سپکه، ضعیف | | |
| زوړ | نشت، نابود، جرام | | |
| زوم | کم، کمی | | |
| زېرمه | تدبیر، ذخیره، پانګه، پاسره | | |
| ژغړ | ژغورلی | | |
| سالکان | زاهدان، عارفان | | |
| ساهو | آزاد، اصیل | | |
| سترغلی | کولک، د سترګو غاټي(کاسه) | | |
| ستور | ځاروي | | |
| سخباب | نولی | | |
| سراښ | حریص | | |
| سفال | ټیټ، بې قدره، پستي او بې همتي، کودړی | | |
| سقلات | خپل ځان پټول | | |
| سکه | نُو، ځکه، ګویا، لکه چي | | |
| سمک | کب، ماهی | | |
| سنډاسي | واڼدې، کېدل، ملنګ، کېمیا لټوونکی ملنګ | | |
| سولند | حریص، بخیل، ممسک، لکه سولند سپي | | |
| سوها | یو ډول پخوانی ټوکر دی | | |
| سپیاري | د تودو سیمو یوه لوړه نرۍ ونه | | |
| سیم | یو ګران بیه فلز | | |
| شب داج | توره شپه، د تروږمۍ شپه | | |
| شط | سیند، هغه ستر رود چي دریاب ته ګډیږي | | |
| شهاب | ستور، ستوري | | |
| طره | جوغه | | |
| طوق | غاړکۍ، امېل | | |
| عتاب | قهر او غصه | | |
| عرعر | سپېدار | | |
| غبغب | د چرګ جنجړي، ججوری | | |
| غربال | غلبېل، پرویځي | | |

| غزا وشوه | دا یو شوق دی، نوڅه وشول؟(یو تکیه کلام) | | |
|---|---|---|---|
| غور | برخه، نصیب، قسمت، مجازاً میراث | | |
| غورځی | په زوره چیغي ایستل، په اتڼ کی ټوپونه او چیغی ایستل | | |
| غوړی | سخت انتظار، غوړلکی، دچا د راتگ د زېږي په انتظار | | |
| غوک | لویه ځنګښه (چونګښه)، شلانډه | | |
| غوندی | د وزغنو جوال | | |
| غوېدژبی | فصیح، بلیغ | | |
| فلوس | د فلس جمع، یو ډول میوه | | |
| قرقره | د چرگ تاج، چرگ خولی، تاج، شوغه | | |
| قنج (غنج) | ناز | | |
| کاړ | د وړوکانو ډېری | | |
| کام | هدف مرام | | |
| کاواک | ډډ، گوگ | | |
| کروړ | سخت، محکم | | |
| کړیکه | چیغه، وېروونکی غږ | | |
| کښیده | نقشه، انځور | | |
| کلاب (کلب) | سپی | | |
| کنګال | مفلس، نېستمن، مېنځل شوی | | |
| کوتل | ذبح کول، حلالول، پوستکی ترې ایستل | | |
| کودیکه | یو ډول خاورین دېگ دی | | |
| کوړمه | کورنی، اهل بیت | | |
| کوله | د ساقي د پاسه د گل برخه | | |
| کوی | چم، کوڅه، مالت | | |
| کهی | ډنګر، لاغر | | |
| گانده | سبا، راتلوني ورځ | | |
| گایل | زخمي، ځوړ | | |
| ژوبل | زخمي، پرهارژلی | | |
| گرام | کلی، سیمه، استو گنځی | | |
| گروهېدل | عقیده لرل، معتقد کېدل | | |
| گړیال | زنګ | | |
| گورهنده | وړه تیاره کوټه، په غرو کي بانډه ډوله ځېړی، مجازاً قبر | | |
| گونټه | د شطرنج دانه | | |
| گوهار | د غواوو پاده | | |
| گوی | پنډوس، پنډوسکه | | |
| گنګو | زعفران | | |
| گېدی | ناپوه، بېړا، احمق | | |
| لارغه | درنګ، ځنډ | | |
| لال | گونګ، یو ډول انگور دی | | |
| لگام | واگي، قبضه | | |
| لو | لوگي | | |
| لوښېدل | یوه داسي اوږده مبارزه کول چي یوه سیاله ډله هم بریالی نشي، خو لاس هم وانخلي | | |
| لوښتل | په کوچ پېل کول، لېږدېدل | | |
| لونل | پاشل | | |
| مال و منال | شته، هستي او دارایي | | |
| ماوا | استوگنځی، مسکن | | |

| متره | نایاب، نشست، زوړ | | |
|---|---|---|---|
| مټ | بازو، هاند، همت | | |
| مجذوب | جذب شوی، عاشق شوی | | |
| مجمر | نغری، دېگدان | | |
| مخمور | مست، نشه | | |
| مخنث | نربښځی | | |
| مذمت | بد ویل، غیبت | | |
| مرسته | طلب، لټون، کومک | | |
| مرغچه (مرغچې) | کونجکه، خرموره | | |
| کونجکه | خرموره | | |
| مستدام | همېشه، تل | | |
| مشاطه | ډمه، سینګاروونکې | | |
| مښګیرک | یو مارغه | | |
| مصحف | کتاب، پاڼې چې سره یو شوې وي | | |
| مطر | باران، ورښت | | |
| معتیو (معتوه) | غیر مکلف، لېونی ډوله | | |
| مغاک | ګودال، ژور غالی | | |
| مقراض | بیاتي، قیچي | | |
| منجلاب | خوسا ډنډ | | |
| منزه | پاک، سپېڅلی، پاکیزه | | |
| مواس | چغولګر | | |
| میثاق | ژمنه، وعده، عهد، پیمان | | |
| میزر | پړونی، چادري | | |
| مهوت | پیلبه، پیل والا | | |
| مهیني | معاش، تنخوا | | |
| نارون (نارو) | یو ډول دانه چې دچټلو اوبو له څښلو پیدا کیږي اوپه مخ کې یې دتارغوندي چینجي وي | | |
| ناړ | ډنډر، ساقه | | |
| ناغه | د سترګو سره رګونه | | |
| ناوک | غشي | | |
| نخل | د خرما ونه، خجوره | | |
| ندا | غږ، اواز | | |
| ندی | زود، وړوکی سیند | | |
| نغړول | نغرل، په یوه سا تېرول | | |
| نغوتل | غوږ نیول، د خبرې منل | | |
| نغوته | اشاره، تلقین | | |
| نمري | جامې، لباس، کالي | | |
| نمط | طریقه، نوع، رَوِش، همفکره ډله | | |
| نول | غم، پرېشاني، اندوه | | |
| نومړ | نومول شوی | | |
| وارړ | غوره، وړ | | |
| وبله | یو تر بله | | |
| ورژلی (ورژل) | رېزه رېزه کول، مرل | | |
| وشتي | ټوکي ټکالي، لطیفې | | |
| وقر(وقار) | طاقت، تحمل، درنښت | | |
| وېلاړ | عزم، اراده، نیت او مراد | | |

| همیانۍ | هغه تېلۍ چې پیسې پکې اېښودل کیږي، کیسه، مضبوطه اراده، په زړه کې یوه خبره غوټه کول | | | |
|---|---|---|---|---|
| هوک | نېغ، شخ | | | |
| یرغال | بېره، یرغل، حمله، برید | | | |
| یسار | کیڼ، اسان | | | |
| یمین | ښې | | | |

# رحمان بابا

له ۱۰۴۲ تر ۱۱۱۸هجري پوري

رحمان بابا د پښتونخوا د پېښور په علاقه په بهادر کلی کی زیږیدلی دي او د پلار نوم ئی عبدالستارؤ ، قوم ئي که څه هم مومند دي مګر د رحمان بابا مقام له دینه ډیر اوچت دي چه دي کومي خاصی قبیلی یا کوم خاص ټبر ته منسوب شي. رحمان بابا هم د ټولو انسانانو دي خو بیا په خاص طور د ټولو پښتنو بابا دي.

رحمان بابا فقه او تصوف له ملا محمد یوسف یوسفزی څخه ولوستل او نور علوم ئي د هغه وخت په هندوستان کي زده کړل. لوی عالم او بزرګ زاهد شو، د پښتنو د لویو او وړو عقیده پرې راغله او ورته بابا وویل.

رحمان بابا په د پېښور په هزار خوانۍ کښي اوسیده. د پېښور دمهمندو په بهادر کلي کښي زیږیدلی دی. دی په چشتیه طریقه کښي د خواجه معین الدین چشتي اجمیري لاروی ؤ. ویل کیږي چي ورځیرمه ملایانو کله د کفر فتوی هم پری ایستلی وه.

د رحمان بابا د اشعار د هر چا د ذوق سره برابر مطالب لري. په پښتو کښي به ډیر داسي کم کور پیدا شي چه د رحمان بابا دیوان هلته نه وي. حتي پښتني مېرمني د رحمان بابا له روح څخه استمداد کوي او په اشعارو ئي فال ګوري، دا ځکه چه ده اشعار له هره لوثه پاک او سپیځلي دي، نه د چا بې ځایه هجو او نه د چا د مبالغې نه ډکه مدح او ستاینه پکي لیدله کيږ ي.

ښاغلي راور ټي او پادری هیوز انګریزی مستشرقین، او اډورن روسی پښتو پیژندونکي، رحمان بابا د پښتو د ادب پیشوا بولي. که څه هم پښتانه د پردیو مستشرقینو قضاوت ته څه اړه نه لري، خو بیا هم له دې څخه، د رحمان بابا ادبي منزلت د پردیو په نظر کښي څرګندیږي.

د رحمان بابا مړی د پښتونخوا پېښور په علاقه د هزار خانې په هدیره کښي ښخ دی.

**دیوان:** ډیره زړه او چاپي نسخه ئي هغه نسخه ده چه په ۱۲۹۳ هجري کال د مولوي احمد په تصحیح او اهتمام په لاهور کښي چاپ شوې ده. دوهمه چاپي نسخه هغه ده چه پروفیسر عبدالمجید افغاني یو مختصر تمهید پرې لیکلي دي.. دریمه چاپي نسخه هغه نسخه ده چه پروسږ کال یعني په ۱۹۴۸ عیسوی کال په لاهور کښي چاپ شوي او مولانا عبدالقادر صاحب د پښتو پیاوړي لیکونکي پرې یو خورا عالمانه تمهید لیکلي دي.

# الف

۱

گوره هسي کردگار دی رب زما
چې صاحب د کل اختيار دی رب زما

همګي بزرګواران چه څوك يې وايي
تر همه ؤ بزرګوار دی رب زما

نه يې هيڅ حاجت په چا باندي موقوف دی
نه د هيچا منت بار دی رب زما

له نيستئ يې د هستئ صورت پيدا کړ
هسي رنګ پروردګار دی رب زما

هم صانع دی د جمله و مصنوعاتو
هم سامع د هر ګفتار دی رب زما

چې يې هيچېرې نه مثل نه مثال شته
د هغو عطرو عطار دی رب زما

هر تعمير چې د دنيا او د عُقبا دی
د همه واړو معمار دی رب زما

خواننده د نانويسو صحيفو دی
دانندہ د هر اسرار دی رب زما

که ظاهر دی که باطن دی که مابين دی
له همه و خبردار دی رب زما

که پيدا که پوشيده دی که اوسط دی
په همه ؤ وقوف دار دی رب زما

شريك نه لري په خپله پادشاهئ کښې
بې شريکه شهريار دی رب زما

هسي نه چه واحدي يې ده له عجزه
په واحد وجود بسيار دی رب زما

حاجت نه لري د هيچا و يارئ ته
له هغو سره چه يار دی رب زما

څه حاجت دی چه و بل خوا ته ئي غواړم
په خپل کور کښې همکنار دی رب زما

هيڅ تغيير و تبديل نه لري رحمانه
تل تر تله بر قرار دی رب زما

۲

که صورت د محمد(ص) نه وای پيدا
پيدا کړې به خدای نه وه دا دنيا

کل جهان د محمد په (مخ)روئ پيدا شه
محمد دی د تمام جهان آبا

نبوت په محمد باندي تمام شه(و)
نشته پس له محمده انبياء

نور هاله د محمد و په جهان کښې
چه نه عرش و نه کرسئ وه نه سما

بوی هاله د محمد ؤ په جهان کي
چه بوئ نه ؤ د آدم او د حوا

په صورت که آخرين دی پيدا شوی
په معنی کښې اولين دی تر هر چا

خدای يې مه ګڼه بې شکه چه بنده دی
نور يې کل واړه صفات دي په رښتيا

که نبي دی که ولي دی که عاصي دی
محمد دی د همه واړو پيشوا

چه يي دين د محمد دی قبول کړی
جنتي دی که فاسق دی که پارسا

محمد د ګمراهانو رهنما دی
محمد دی د ړندو د لاس عصا

که رڼا ده پيروي د محمد ده
ګڼه نشته په جهان بله رڼآ

محمد د بيچاره و چاره ګر دی
محمد دی هر دردمند لره دوا

زه رحمان د محمد د در خاکروب يم
که مې خدای نه کا له دې دره جدا

۳

دوباره دې راتله نشته په دنيا
نن دې وار دی که دروغ کړې که رښتيا

هره چار چې تر وقت تېره شي عنقا شي
عنقا نه دی په دام نښتی د هيچا

تر ورخ تېرې اوبه بېرته نه جار وزي
نه جار وزي تير ساعت په بيرته بيا

تېر ساعت په مثال مړی د لحد دی
مړ چا نه دی ژوندی کړی په ژړا

که مقصود لرې تلوار کړه وقت کوتاه دی
غره مه شه د دې عمر په بقا

هره ښه چه صحيح ګڼې په زړه کښې
په غرور به هغه ښه کړې خطا

په اميد اميد يې خلق نا اميد کړه
د ايام له مکره مه شه بې پروا

چه د مرګ په تماچه دې شي خوله ماته
ترو په ماته خوله به څه رنګ کړې ثنا

وير ژړلې ارتينې چې وينا وايي
تا ته وايي که پوهيږې په وينا

هلك نه يې چې په زور دې څوك تعليم کا
هم عاقل يې هم بالغ يې هم دانا

په عمل د نيک و بدو فهم وکړه
چې په دا کښې دی بهبود دی که په دا

سر دننه په ګريوان کړه سترګې رونې
ډير په پورته پورته مه ځه په هوا

سر هوا سر هوا مه ځه و آسمان ته
ته په اصل کښې له زمکې يې پيدا

د عمل په ځای به دا پوښتنه نه وي
چه ته زوی يې يا نمسی د فلانا

په خپل ځان ښيګڼه وکړه غره مه شه
په ښيګڼه د ادې او د بابا

هغه ناوې چه په خپله ښايسته نه وي
څوك يې څه کاندې ښايست د موراو نيا

دا خبره زه و ځان ته کړم اې ياره
دلګير مه شه که مې نوم واخيست دا ستا

نوم دا ستا او د بل اخلم ځان ته وايم
نه مې کار نه مې غرض شته په بل چا

هرچې وايم همه واړه ځان ته وايم
دا عيبونه دې همه واړه زما

که مې ځای د دې غمونو وای په زړه کښې
ما به څه لره کوله دا انشا

چه د مرګ سختې خوارې يې ستا په خوا دي
اې رحمانه ولې نه مرې لا پخوا

۴

هيڅ ثابته نه کړه چا د دې دنيا وفا
واړه ميني کاندي بېهوده په دا دنيا

هر څوک چه دعوې په دا دنيا کا د خپلوۍ
واړه باطل وايي دنيا نه ده د هېچا

دا فلک کلال دی سازول او ماتول کا
ډيريي ما و تا غوندې پيدا کړه هم فنا

هر سنګ و کلوخ چه ځرګنديږي د دې دهر
واړه ککرۍ دي څوک د شاه څوک د ګدا

دام دي هيڅوک نه يړدي د دنيا و رهګذر ته
ښکار به وکړی نه شي د سيمرغ او دعنقا

هر څوک چې له دې فاني نفس وابستګي کا
نه به شي تړلي په زنځير باندې هوا

ماه دی که آفتاب دی عاقبت واړه خراب دي
ګل که هميشه  وي هسې نه تر ابدا

مه درومه رحمانه په خلاف د دانايانو
مينه د دنيا پسندلي نه ده هېڅ دانا

۵

چي دوې ښځې وي د چا
هم سُني وي هم پارسا

خدمت کړوني د څښتن وي
په ښه خوی وي اراستا

تفاوت په کي حرام دی
که شري وي که خاصا

لازم دادی و څښتن ته
تفاوت دې نه کا بيا

په خوراک هم په پوښاک کي
که کښه وي که حدوا

او که دا هسي به نه کا
خپل عمل به کا بيديا

يو دلي به مجنون ومري
بل هورې به شي روی سيا

دا حديث دی وارد شوی
که څوک فهم کا په دا

هغه څوک چي تفاوت کا
زه ويزار يم دی له ما

په مشکات کې دی راغلی
ورشه  پوښته علما

رحمان ژغورې يوه خدايه
له عذابه له خطا

۶

ښه ده ښه ده دا دنيا
چي توښه ده د عقبا

مذمت د دنيا مه کړه
واوره پند کړه دا وينا

د دنيا په بازار کيږي
د هغه جهان سودا

په دنيا کښې ډيرحکمت دی
پرې پوهيږي حکما

که غليم لره يې ورکړې
غليم دوست کا په هوا

که تر سر يې صدقه کړې
رفع دفع کړي بلا

که په اور باندې يې کيږدې
بوی د عودو کړي پيدا

که يې بذل په صحرا کړې
ښايسته کاندې صحرا

که يې نذر کړې و پير ته
خوشحال درومي په خندا

څو ژوندی وې په جهان کې
يادوي دې په دعا

د حاتم په څېردې ستايي
خطاب درکړي د سخا

سخي هريو دوست خدای دی
ولو کانَ فاسقآ

هر بخيل د خدای دښمن دی
ولو کانَ زاهدآ

دنيا کښت د آخرت دی
دا خبره ده رښتيا

د دنيا طالبان ډير دي
که يې مومي څوک له چا

ولی مرد په کښې هغه دی
چه سخي وي هم پارسا

په دنيا کښې بدي نشته
که بدي نه وي له تا

په دنيا کښې خطا نشته
که له تا نه وي خطا

دنیا بحر دی بهیږي — آیینې غوندې صفا
خېل خېل مخ په کښې لیده شي — که څوک زشت وي که زیبا
هم خطر په کښې د سر سته — هم گوهر دی بې بها
وفا دار لره وفا شوه — جفا کار لره جفا
له یوه مخه یې درد وي — له بل مخه یې دوا
چېرته خوند کاندي د زهرو — چېرته خوند کا د حلوا
کار همه واړه موقوف دی — د سړي په مدعا
سالکان دې ننداره چي شي — دخپل ځان په تماشا
هرچي کا هغه به مومي — دنیا ځای دی د جزا
لکه وي هسي به پاځي — که نادان وي که دانا
که دانا یې وپوهیږه — په روا په ناروا
فتوا ونیسه په مخ کښې — پسې مټ کړه په تقوا
دنیا نه ده واړه دین دی — چې له نه یې وي سپوا
و طاعت وته ولاړ وي — همیشه تړلې ملا
له حراموېي پرهیز وي — هم مشغول په پنج بنا
کلمه یې وي قبوله — هم په جهر په اخفا
د دنیا د کار لپاره — فرض لمونځ نه کاندي قضا
هم صایم د رمضان وي — هم زکات کاندي ادا
که یې توان د حج رسیږي — حج هم وکړي پسې بیا
دا پنځه بنا ددین دي — چه بیان یې وکړ ما
چه یې یون په دا طریق وي — هغه کس دی اولیآ
که یې مال ددنیا ډیر وي — هیڅ دې نه کاندي پروا
دنیا بده د هغو ده — چه یې کسب وي د ریا
یا یې کسب د ریا وي — یا یې وګټي په غلا
یا یې توله کا په ظلم — یا د خمرو په سودا
یا یې ورکا په شرابو — یا یې ورکا په زنا
یا ناحق خونونه کاندي — یا مالونه خوري د چا
عبادت کا په ځان فرض — د پادشاه د امرا
حق باطل کا باطل حق کا — په سبب د روی ریا
نه یې ویره شي له خدایه — نه یې شرم نه حیا
د یوې ګېډې د پاره — هزار خونې کا بیدیا
همیشه یې له ستمه — واړه خاک وي په غوغا
ګوش وهوش یې هرګز نه وي — د مظلومو په ژړا
د فرعون په څېر به ناست وي — بې پروا و کبریا
بتخانې و ته یې مخ وي — و مسجد وته یې شا
اختلاط کا له بدانو — له نیکانوو وي جدا
هیڅ یې نه وي په خاطرکښې — تولاً و تبراً
و رحمان ته پېښه مه کړې — خدایه هسې رنګ بلا!

راشه مه کوه له چا سره جفا
په دنیا کښې هيڅوک نه دي پاتي شوني
دا ياران چه نن و تا وته جلوه کا
که ديدن د دوی دي خوښ وي ورته ګوره
د خزان پاڼې چې بېلې شي له څانګې
چې په زمکه څاڅکي پريوزي له آسمانه
ګمان مه کړه چه بيا سترګو لره ور شي
دا په هره ورځ چې خيژي بيل بيل نمر دی
که جنت په زهد نه دی بې له فضله
که د نفس دپاره سل محنته وکړې
که تمام جهان په خپله ګېډه وخورې
که يوه دانه د وږي په لاس ورکړې
که يو څاڅکی اوبه تږي لره ورکړې
که يو ځله سر د خدای دپاره ټيټ کړې
بازار دا دی که څوک سود و سودا کاندي
آشنايان که څوک پوهيږي نن يې وخت دی
که ژوندون دی خو هم دا دی په جهان کښې
خدای امان راکړه له هسې زندګۍ
زهر ښه دي چې په صلح په صلاح وي
نس په خاورو په خس ډک ښه دی بې غمه
ماته ملا په مشقت په محنت ښه ده
ړوند بهتر دی چې څه نه ويني په سترګو
ګونګ بهتر دی چې بې کامه بې زبان وي
کوڼ بهتر دی چې نه اوري په غوږو
ديو او دد که په خوا درشي خو بهتر دي
د جاهل تر همدميه به بهتر وي
که مشکل دی خو د زړونو رغول دي
سود و زيان د دنيا واړه سهل کار دی
چې د ورور او عزيز زړه پرې آزار شي
ګاه د نورو رضا بويه ګاهي خپله
ښه خواړه چې يو يې خوري بل ورته ګوري
چې ښادي يې يو زمان وي غم تر تله
لکه ځان هسې و بل و ته نظر کړه
منصفانو لره بويه چه انصاف کا
د سړي په خاطر هر څه هر څه ګرځي
ديندار ان دې و خپل دين وته نظر کا
خدای دې نه کاندي خطا د چا له لاسه
هسې نه چې سړي واړه سره سم دي
د هر چا حرمت په خپله اندازه دی

لږ ژوندون دی ضايع کيږي بی وفا
واړه تلوني دي که نن دي که سبا
په دوه ورځې پس به واړه شي فنا
چه فنا شي بيا به کله شي پيدا
په حکمت به يې پيوند نه کا حکما
بيا له زمکې ختی نه شي په سما
هغه اوښکې چه له سترګو شي جدا
هر چې پريوزي هغه نه شي ختی بيا
هر سړی دې خپله غاړه کړي ادا
يو محنت به دې پکار نه شي فردا
ياد به نه شي په درود او په دعا
هم دغه به دې توښه شي د عقبا
د دوزخ او ستا تر مينځ به شی دريا
په قيامت به سر بلند شي له هرچا
په هغه جهان نه سود شته نه سودا
چې ځاريږي يو آشنا تر بل آشنا
چې له چا سره تېرېږي په خندا
چې ته بد وايې له بله بل له تا
نه شکرې په فتنه او په غوغا
نه د غم په خارو خس پخه حلوا
نه حرامه هميانۍ د چا تر ملا
نه چې سترګې په پردي حرام کا وا
نه چې ژبه شي په بد ويل ګويا
نه چې غوږ کاندي په بد وييل شنوا
خدای دې بد سړی در نه ولي په خوا
که له چا سره همدم وي اژدها
سهل کار دی سود او زيان د دې دنيا
خدای دې نه کا څوک په سهل کار رسوا
حاصل مه شه هغه خپله مدعا
په کار نه ده هميشه خپله رضا
خواړه نه دي هغه زهر دي ګويا
دغه هسې چارې نه کاندی دانا
لکه ستا دی هسې ځان دی د هر چا
نه نغوته کا د حرص او د هوا
هسې نه چې واړه وګڼي روا
څوک په فکر د صواب څوک په خطا
څه نسبت دی د خطا او د عطا
څوک اعلی دی څوک اوسط دی څوک ادنا
نه چې مومي نفر ځای د امرا

زه رحمان له چا شکوه شکایت نه کړم نشته بل دوست و دښمن زما بې تا

۸

ته چي ما ته وایي چي په څه کوي ژړا نه در معلومیږي دغه خپل جور و جفا
ته جور و جفا کړې زه ژړا کوم دلبره ستا که دغه نه وای دا به هم نه وای زما
څه ښادي به کاندي طایفه د عاشقانو رسم د بتانو که هم دا وي لکه ستا
دا خصلت چي ستا دی که هم تل په دغه شان وي نه را معلومیږي د دردمندو زړو دوا
یو د ستا مانې شه بل غرور د رقیبانو وار په وار مي وژني کله هغه کله دا
هر چي عاشقي کا که په قطع افلاطون وي زه خو یې مجنون ګڼم که نن وي که سبا
سپی هم په عذاب د جدایي د وژلو نه دی زه خو ګوندي ستا د کوڅې سپی شوم په وینا
هېڅ مي په کار نه دي رحمان تا غواړم دلبره دا زما رضا ده باقي هرڅه ستا رضا

۹

عالمان دي رو ښنایي د دې دنیا عالمان دي د تمام جهان پیشوا
که څوک لار غواړي وخدای هم و رسول ته عالمان دي د دې لارې رهنما
کیمیا ګر که د کیمیا په طلب ګرځي همدمي د عالمانو ده کیمیا
په مجلس د عالمانو به سره زر شي که څوک کاڼی وي یا لوټه د صحرا
جاهلان دي په مثال د مردګانو عالمان دي په مثال د مسیحا
چي مرده یې له نفسه ژوندی کیږي عالمان دي واړه هیسې اولیا
هر سړی چي رتبه نه لري د علم سړی نه دی خالي نقش دی ګویا
زه رحمان حلقه بګوش د هر عالم یم که اعلی دی که اوسط دی که ادنا

۱۰

که خپل زړه غواړې له چا ځان صیاد کړه د عنقا
د حباب کلاه په سر کړه سپور په آس شه د هوا
لکه خضر هسې پا څه اوبه وڅښه د بقا
له زمینه قدم کیږده په آسمان لکه عیسی
د هغه استاد شاګرد شه چي در و ښیي کیمیا
دا چي ما درته بیان کړ ه که حاصل کړې واړه دا
ها له طمع کړ ه رحمانه له خوبانو د وفا

۱۱

دا دنیا ده بې وفا بې وفا ده بې بقا
نه یې مخ شته نه یې څټ شته لکه لوټه د صحرا
په یوه ګړۍ یې مخ وي په یوه ګړۍ یې شا
په یوه ګړۍ د تا وي په یوه ګړۍ زما
په یوه ګړۍ یې درد وي په یوه ګړۍ دوا
په یوه ګړۍ یې خوف وي په یوه ګړۍ رجا
په ساعت کې یې بقا وي په ساعت کې یې فنا
په ساعت کې یې سکوت وي په ساعت کې یې غوغا
په ساعت کې یې خندا وي په ساعت کې یې ژړا
په ساعت کې یې وفا وي په ساعت کې یې جفا
په ساعت کښې یې افلاس وي په ساعت کې یې غنا
چي نه شان لري نه شکل کله دا شي کله دا

خدای څوک ببښ مه کړه رحمانه

په دا هسې رنګ بلا

۱۲

په ښادۍ ښاد شوی نه یم د هېڅچا
که زه طمع توقع له بله نه کړم
که مي ورور که مي عزیز که مي فرزند دی
په هرکورکي رنځوران راته پراته دي
د دنیا خبرې واړه په دنیا شي
که په کلي کښې مې کور دی زه ګمان کړم
چې څه کار پرې نه پوره وي نه نیمګړی
چه یې ښه توښه و بله سره نه شي
په توده زمکه استوګنه ده مشکله

تور تپ شوی یم په غم د هر آشنا
د بل طمع توقع کیږي له ما
واړه غواړي خپله خپله مدعا
لاس مې نه رسي د هېڅچا په دوا
ما به څه کا څوک چه نه لرم دنیا
چه کور نه دی دا مې ګور دی په صحرا
څوک به څه کا له هغو سره خندا
تر هغه آشنا بهتر دی نا آشنا
څه به زیست شي له رحمان سره د چا

۱۳

بادشاهي لري هر یو غلام د ستا
پخته کله وي چه لاف د پختګی کا
خو هم هغومره یې نظر په ننګ و نام وي
همیشه به له مقامه بې مقام وي
څو په خپلو وینو ګل غوندي غرق نه وي
صبح و شام په هغو خلقو باندې یو وي
بل کلام یې په زړه کله اثر کاندي
فراموش کاندي همه نورې مستی
دام د ستا د تورو زلفو عالم ګیر دی
زه رحمان دعا سلام په هغو وایم

د خاصانو په ځای ناست وي عام د ستا
پختګان دي په دې خم کښې خام د ستا
چا چې نه وي اوریدلی نام د ستا
هغه څوک چه لټوي مقام د ستا
وبه نه ویني رخسار ګلفام د ستا
چه آرزو لري هر صبح و شام د ستا
چه تر غوږ یې شي شیرین کلام د ستا
هر چې نوش کاندي باده په جام د ستا
تنها نه یم نښتی زه په دام د ستا
هر چې ما لره راوړي سلام د ستا

۱۴

هر چې ووینې په سترګو روی د ستا
بې دماغه په تر سر و تر ماله تېر شي
که لویی کړي څه بې ځایه خو یې نه کړې
نو بهار دی عالم سیر د بوستان کاندي
د عیسی له دمه دم وهلی نشم
هم په دا مي له چشمانو رود بهیږی
همیشه یې زړه اور باندې سپند وي
د لړم لاشه یې ما ته وي په زړه کښې
و زنځیر وته یې څه لره را کاږې
و ګړنګ وته پخپله ځان پرې باسي
که ته سل ځله زما یې زه د ستا یم
ګل لمبه شه د بلبل په آه رحمانه!

مخ یې کوږ وي همیشه په سوی د ستا
چې یې تیر شي تر دماغه بوی د ستا
چې په دا رنګه قامت دی لوی د ستا
خدای و ما وته بوستان کړ کوی د ستا
چې خوله ببرته شي په ګفت و ګوی د ستا
چې یادیږي مي قامت دلجوی د ستا
و هغو ته چه څرګند شي خوی د ستا
چې یې نقش وي په زړه ابروی د ستا
لیونیو لره بس وي موی د ستا
چه و زړه وته پرې باسي روی د ستا
تلوني نه دي له ما جست و جوی د ستا
نه ګروهیږي یار په های و هوی د ستا

۱۵

خوی که په دا شان وي دل آزار ستا
څه ښادي به کاندي طلب ګار ستا

حیف چي اوریده شي لیدی نه شي
حسن و لطافت دی پریوار ستا

بیا دوباره نه ګوري و بل ته
هر چا چي لیدلی وی رخسار ستا

خدای زده چي ته یار د کوم یوه یي
هر طرف یاران دي صد هزار ستا

ځای د پښوایښودو مونده نه شي
همره عاشقان دي په دربار ستا

بل به هسې نه وي که خدای کاندي
ما غوندې خاکسار او هوادار ستا

بل ګمان په ما باندې ومه کړه
عمر واړه زه او انتظار ستا

عشق له حسنه حسن دی له عشقه
ته نګار زما یې زه نګار ستا

ته زما مطلوب یي زه طالب یم
ته زما طبیب یي زه بیمار ستا

ته که تازه ګل د نو بهار یي
زه یم عندلیب په لاله زار ستا

جور دی که جفا ده که ستم دی
واړه مي منلي دي یک بار ستا

جور و جفا څوک په بها پلوري
زه یم د جورونو خریدار ستا

یو تار که ضایع شي ستا د زلفو
ځان به صدقه کړم تر هر تار ستا

سل ازمیښتونه دې را وکړه
حیف دی چه لا نه شي اعتبار ستا

تېر یم زه رحمان له هره کاره
اوس مي ملا تړلي ده په کار ستا

۱۶

که څوک یار په جهان غواړي یار دی دا
یار دی دا که د جهان سینګار دی دا ؟

خیال د زلفو یې زما تر زړه چارپېر شو
یا تر ګنجه چارپېر شوی مار دی دا ؟

دا جهان دی خدای له عشقه پیدا کړی
د جمله و مخلوقاتو پلار دی دا

تر عشق غوره بل کار په جهان نشته
تر همه کارونو غوره کاردی دا

بل بلبل به د ګل نوم اخیستی نه و
که خبر وی چي ګل نه دی خار دی دا

بیا راتله دې دې جهان ته بل وار نشته
بل وار نشته بل وار نشته وار دی دا

د حباب عمر دې وګوره چه څو دی
که څوک شمار کاندي د عمر شمار دی دا

د مجنون صورت په زړه کړه رحمان ګوره
ستا په عشق کښې هسې خوار و زار دی دا

۱۷

چي له تا سره په سر کاندي سودا
بل به نه وي هسي ما غوندې شیدا

نه به ما غوندې شیدا وي په جهان کښې
نه به تا غوندې دلبر شي بل پیدا

ما دا ستا جور و جفا دي قبول کړي
ولې نشي د ژړا په ځای خندا

بې د ستا له مخه کون دی که مکان دی
ښه توښه مي نه په دا شي نه په دا

جدایي به دې هیڅ رنګ قبوله نه کړم
څو مي نه دی روح کالبوت سره جدا

لکه ورستو مقتدیان وړاندې امام وي
ما په تا پسي ده کړې اقتدا

زه یي وینم درست جهان په تا مین دی
که بادشاه دی د دې دهر که ګدا

کاشکي خط د اماني و ما له را کړې
چي له ما سره وعده کړې د فردا

زه پخپله په تا نه یم مین شوی
ستا له لوري په ما شوې ده ندا

زه په تا باندې مین یم له ازله
نه چي کړې مي نن ورځ ده ابتدا

چه د ستا د عاشقی په تیغ شهید شي
د رحمان غاړه به هاله شي ادا

د رحمان و زیړي رنګ وته نظر کړه
چه مدام په تا پسي کاندي ژړا

۱۸

هسې نه چې زما يار واړه جفا کا
صد چندان لکه جفا همره وفا کا

لکه زه چې په خپل يار باندې مين يم
يو په سله همره مينه يار په ما کا

زړه يې وړی په احسان دی نه په جور
مجنون ځکه په ليلی پسې ژړا کا

درست جهان د خوبرويانو ناز بردار دی
نه يوازې دغه ناز په ما و تا کا

نه به ګوري رحمان څه شکل هغه مخ ته
فرښتې چې يې د حسن تماشا کا

۱۹

هر چې ستا کوڅه ماوا کا
ځای يې بر شي تر افلا کا

ځان هاله ورته بادشاه شي
چې يې ستا د در ګدا کا

چه د ستا د در ګدا شي
بادشاهۍ وته نور شا کا

نظر بې د ستا له رويه
نه په ارض نه په سما کا

مينه بې د ستا له مخه
نه په دين نه په دنيا کا

ستا په مهر و محبت کښې
ځان جهان واړه فنا کا

د دنيا کور و وګړي
ستا په مينه کښې تالا کا

رضا ستا په رضا کيږدي
ترکه خپله مدعا کا

و هر خوا ته چه ستا مخ شي
دی هم مخ په هغه خوا کا

چې له چا سره جفا کړې
له هغه سره جفا کا

که له چا سره وفا کړې
له هغه سره وفا کا

که په عمر چيرې خاندي
خو له تا سره خندا کا

که په عمر چيرې ژاړي
خو په تا پسې ژړا کا

که مطلب يې د ديدار وي
ستا د حسن تماشا کا

که مطلب يې د ګفتار وي
ستا په ذکر مشغولا کا

د ر ښتينو مقام دا دی
که څوک مينه په رښتيا کا

عاشقان په عاشقۍ کښې
چه رحمان وايي هم دا کا

۲۰

چې امید په عمارت د دې دنیا کا
د کاغذ په کشتۍ سیر د دریا کا

د آسمان توسن هېچا نه دی تړلی
څوک به څه رنګه سورلی د باد په شا کا

نه لېوه په آدمیت آموخته کېږي
نه امید د مروت شي له افلا کا

له فلکه د وفا امید باطل دی
کله دیو له آدم زاد سره وفا کا

زمانه په اسلام کفر سمه ګرځي
فرق د تور و د سپن کله نابینا کا

ما د دهر علامت په سترګو ولید
په هر دم هزار پیدا هزار فنا کا

هېڅ امید مې د ایام په ګردش نه شي
څه فرصت به په خپل دور وما را کا

په خپل عمر به هېچا لیدلي نه وي
هغه چارې چې دی هر ساعت په ما کا

که د ګلو غنچه کېږدم په دستار کښې
شوم طالع مې هلته خار ځنې پیدا کا

که و زرو وته لاس کړم خاورې کېږي
که د خاورو په آرزو شم استغنا کا

جدایي د خدای بلا شوه نه توانیږم
خوشي زړه مې په دیدن پسې ژړا کا

هومره صبر دی عاشق سره له کومه
چې د نن وعده موقوفه په فردا کا

که د اور جامه را واغوندې دلبره
په نظر زما جلوه لکه دیبا کا

په خپل عشق کښې که څوک بد را باندې وایي
زه ګمان کړم چه همه زما ثنا کا

ملامت په عاشق ښایي دا دستور دی
چې روغ خلک په رنځور پورې خندا کا

عاشقي ننګ و ناموس دي وبله لرې
په روښانه ورځ به څه رنګه څوک غلا کا

که زه طمع کړم د ګلو له طالع نه
ما عاجز لره د ګل په ځای خار را کا

که زه ځان ژغورم په عشق ګښې له عالمه
زمانه مې په جهان باندې رسوا کا

همېشه به په عالم کښې وي سرخ رویه
چه ثنا لکه بلبل د خپل آشنا کا

دا ځواب رحمان هغه کا چې دولت وي
که دلبر د دیدن مې پیاپی را کا

۲۱

هغه ژوی چې مین وي څه به خوب کا
چې مجنون غوندې مین وي څه به خوب کا

هر نفس د سړي تله دي له جهانه
چې یې هر نفس رفتن وي څه به خوب کا

چې سبا له خپله یاره جدا کېږي
که د سلو شپو کرمن وي څه به خوب کا

عاشقي ده خدای له اوره پیدا کړې
چې په اور کښې یې وطن وي څه به خوب کا

د اوبو تږی هم خوب کولی نه شي
څوک چې تږی د دیدن وي څه به خوب کا

د رقیب له جوره خوب د عاشق نه شي
د هغوچې دیو د ښمن وي څه به خوب کا

د مجاز بندي خو خوب کولی نشي
چې یې زلفې طوق رسن وي څه به خوب کا

خوب خندا له بې غمی کیږي رحمانه
څوک چې تاغوندې غمجن وي څه به خوب کا

۲۲

چې په سترګو کښې يې خار وي څه به خوب کا
چې په زړه يې غم د يار وي څه به خوب کا

خوب له ياره سره هم د عاشق نه شي
چې يې يار په بل ديار وي څه به خوب کا

په دنيا کښې خوب هغه کا چه نادان وي
هغه ژوی چه هو ښيار وي څه به خوب کا

کوم طالب مطلوب موندلی دی په خوب کښې
هغه څوک چه طلبګار وي څه به خوب کا

ديدار نه دی چا په پټو سترګو کړی
چې مطلب د چا ديدار وي څه به خوب کا

بله لار د مرګ تر لارې ګرانه نشته!
چې په خوا يې هسې لار وي څه به خوب کا

هر نګاه د دلبرانو ذوالفقار دی
هر چه غوځ په ذوالفقار وي څه به خوب کا

د لړم چيچلی خوب کولی نشي
چي خوړلی تور ښامار وي څه به خوب کا

زه رحمان د يار بنده و خدمتګار يم
چي بنده او خدمتګار وي څه به خوب کا

٢٣

هغه ژوی چي بې خدايه محبت کا
همګي واړه بې ځايه محبت کا

محبت بې خدايه واړه د زړه رنځ دی
که مدام له چنګ و نايه محبت کا

خرخاري ده چي يې يو له بله کاندي
هر خودرای چې له خودرايه محبت کا

نتيجه يې ريش کنده جامه پاره وي
آدم زاد چې له چارپايه محبت کا

هغه سرای لره به تله ور باندې ګران وي
هر سړی چه له دې سرايه محبت کا

بوالهوس به نه پتنګ نه پروانه شي
د مګس په څېر له ورايه محبت کا

چې د تورو زلفو سيوری په چا وشي
هغه کله له همايه محبت کا

رحمان ځکه د ريبار متابعت کا
چې رهروله رهنمايه محبت کا

٢۴

اورنګ زيب چې آرايش د تخت و تاج کا
تخت و تاج به يې مرګی تاخت و تاراج کا

به جهان کښې به يې پاتې ښه بد نوم شي
دی که چارې د کسری او د حجاج کا

اوبه سترګو لره لاړې اور د زړه شه
څوک به څه شکله ژوندون په دا مزاج کا

جدايي زما په زړه کا هسې چارې
لکه باز چې په تارو او په دراج کا

زما اوښکې چې پيدا د زړه له يم شوې
لکه اور چې له کبابه نم اخراج کا

زه غمجن د عيد په جشن خبر نه شوم
که نور خلک های و هوی ته احتياج کا

هر ناوک چې د قضا له شسته خېژي
زمانه د رحمان زړه ورته آماج کا

٢۵

د بې دردو همدمي به دې بې درد کا
د نامردو همدمي به دې نامرد کا

صحبت بې تاثيره نه دی دا حديث دی
کنګونمري هم په څير د ګنګو زرد کا

هر کالی چه څوک په زمکه باندي کيږدي
هغه زمکه يې له جنسه د خپل ګرد کا

په مجلس د ويرژړليو څوک ور مه شه
که صحيح سلامت وي آه يي سرد کا

چې دويي له ميانه لرې شي رحمانه
معشوقه عاشق پخپله ناز پرورد کا

۲۶

که په گنج د شاهي فخر شهريار کا
عاشقان يې د دلبرو په رخسار کا

خرقه پوشو په خرقه  کښې دی موندلی
هغه عيش چې په  دنيا  کښې دنيا دار کا

پتنگانو لره ورکړ خدای په اور کښې!
هغه عيش چې يې بلبله په گلزار کا

نيک ساعت په بد بدل د هېچا مه شه
په وصال کې‌غم د هجر ور دوچار کا

نس د گور او دمور يو دی په معنی کښې
خو په  چا  يې تور  لحد  په چا بازار کا

د بېړۍ په ډوبېدو چې رب راضي شي
يګانګي ملاح د زړونو کله هلته کار کا

هغه  مخ چې مادر زاد ښايسته نه وي
مشقت د مشاطې واړه مردار کا

يار د ناز له  خوبه  پاڅي پسې گرزي
چې فلک د عاشقانو بخت بيدار کا

بې له تانه مدام سوزي دايي حال دی
لکه شمع چې څوک بله په مزار کا

نېمه شپه يې يار تر سره پورې کښيني
لکه شمع چې څوک بله په مزار کا

د مستۍ د هو ښياری يون يې څرگند وي
په هرچا کې چې څه وي هسې رفتار کا

د بلبلو نغمه زاغ کولای نه شي
هر سرود آواز په طور د خپل تار کا

رحمان هسې بې  وقوف سوداگر نه دی
چې د دين متاع بدله په دينار کا

۲۷

هر گفتار هره وينا چې څوک عبس کا
تر عبس ويل دا به ده چې يې بس کا

په هغې وينا چې وروسته پښېمانېږي
له اوله دې خوله هسکه (له نفس) کا

هره چار چې له اختياره وي وتلې
بېهوده به يې څوک لاف د دست و رس کا

فقيري د خدای په مهر مونده کيږي
دا هنر په کبر نه شي چې يې نس کا

آدم زاد په معنی واړه يو وجود دی
يو وجود دی هم يې پاک هم يې نجس کا

که يې اصل يو وجود دی (په دې) څه شو
دگلونو هنر کله خارو خس کا

په اخلاص د نماز گذارو دی جنوب دی
هر نماز يې چې (په) ريا تيمم اودس کا

معتقد له اعتقاده مقصود بيا موند
د هغو طاعت غلط دی چې وسوس کا

که خود بين وي ته يې څه کوې رحمانه
د خود بينو سزا خپله خودي بس کا

۲۸

دلربا که د خپل حسن مخ عيان کا
ډېر بې غمه جمع زړونه به لړزان کا

په کشور د صابرانو به قيامت شي
اسرافيل غوندې آواز به هر نالان کا

چې يې چا جام د لعلو وي نوشلی
پيمانه چغلگري په دا نادان کا

د جبين په چين يې هسې رنگ پوهيږم
چې محراب به د بايلو زړونه وران کا

د پرېشان گيسو دليل يې عين دادی
چې وابست زړونه په دا رنگ پرېشان کا

که جلوه يې د جمال شي معينه
په شعله به لمر، سپوږمۍ سوي نانان کا

که د باد گذريې وشي  خاکپای ته
د رندو سترگو دارو به خدای اسان کا

که شانه په تورو زلفو باندې کيږدي
مښک عنبر به د يوې پيسې ډېران کا

تورې زلفې يې هم مښک دي هم عنبر دي
خو زما له کم بختی يې خدای ماران کا

که پلو له مخه ليرې کا رحمانه
په ديدن به هندوان واړه مسلمان کا

۲۹

زما اوښکې چې دا هسې شست و شو کا
تل يې مخ وي تر خوبانو پورې وللی
د عاشق د سينې چاک به ور ځرګند شي
د عشق اور چې شمع خود په سر قبول کړي
ګل څه نه وايي چې غرق په وينو ناست وي
زه که مرګ غواړم بې ياره ګرم خو نه يم
معشوقې په محنت نه دي چا موندلي

دا محنت واړه زما د مخ په ولو کا
عاشقي چې د چا اوښکې په شېبو کا
که څوک سر و خپل ګريوانو ته فرو کا
پروانه به څه حجت د ځان په سوو کا
بلبل څه لره بې ځايه ګفتګو کا
جدايي سړی په ځان پورې پکو کا
مګر خدای يې په رحمان باندې پېرزو کا

۳۰

ورځ چې بده شي عاقل او دانا څه کا
مور و پلار خو نېک فرزند له خدايه غواړي
يار له ياره په لوی لاس کله بېلېږي
په ښيرو په دعا څه شي کړونی خدای دی
بخت په زور و په زر نه دی چا خپل کړی
اې رحمانه پتنګ عذر شو چې وسه

چه قضا شي ور دوچاره حکما څه کا
چه بد بخت شي ادې څه کا بابا څه کا
چه لاس نه رسي يار څه کا آشنا څه کا
چې خدای نه کا ښېرې څه کا دعا څه کا
په دا کارکښې ناتوان څه کا توانا څه کا
نور د شمعې خندا څه کا ژړا څه کا

۳۱

ځو يو ځله يې تاراج په جفا نه کا
که يې سر په بوسه ورکړم زه پوهېږم
چې په خپله رضا تللي مادر زاد وي
ځو يې خپله مدعا حاصله نه وي
که يې سل ځله دعا کوم په عمر
که آهونه آتشين پسې وکاږم
که آرام غواړي رحمان په عاشقی کښې

يار له ياره سره مهر و وفا نه کا
چې قبول به دغه عجز زما نه کا
هغه هېڅېرې د نورو رضا نه کا
مهرويان په خوله د خضر سودا نه کا
ګوش و هوش د دعاګوی په دعا نه کا
لکه سروه له خزانه پروا نه کا
دا خو واړه ناروا کا ناروا نه کا

۳۲

زړه مې بې خپله نګاره آرام نه کا
بې ناکامه زيست محال دی په دنيا کښې
د آسمان مانۍ به هم په قرار نه وي
ګاه يې کښېنوي په تخت کله په خاورو
بې له سروې چه آزاده خدای پيدا کړه
کوه و دشت هم د خزان له غمه ريږدي
چا چې سر دی په سجده ويار ته ايښی
چې يې کده ده يار په لوري لوښتې
نشستن د عاشق نشته لکه شمعه
چې محظوظ وي په تش بوي د مهرويانو
چې لذت يې د سرو شنډو وي موندلی
په هغو د لعلو لبو مې حرام دی
رحمان هسې و خپل يار ته بې حجت دی

کامراني را څخه غواړي ناکام نه کا
د کوم آس په خوله کښې د خل لګام نه کا
سالک ځکه قصد د قصر و د بام نه کا
زمانه رضا د هېچا مدام نه کا
ترکې ځکه و هېچا ته سلام نه کا
ځکه زرکه و چمن ته خرام نه کا
دوباره له دې سجوده قيام نه کا
لکه بحر هسې دورمې مقام نه کا
ځو صورت د عشق په اور کښې تمام نه کا
هغه فکر د بوسې د پيغام نه کا
نوره مينه د شرابو په جام نه کا
ځو دا نور لذت په خپل ځان حرام نه کا
لکه عذر چې صاحب ته غلام نه کا

۳۳

چه امید په عمارت د د ي جهان کا
لکه کربنه په اوبو هسې نشان کا

د اوبو په مخ د کربنې بقا نشته
په نابود باندې ناحق د بود گمان کا

نادانانو هسې دين په دنيا بايلود
لکه اوړکی دُر بدل په پارچه نان کا

د دنيا و دين نسبت وبلته نه شي
اور اوبو سره استوگنه په څه شان کا

عشق د نفس له خاصيته منزه دی
کار د سترگو به څوک څنگه په دهان کا

لکه چشم و گوش په کارکې وبله بيل وي
هسې دين و دنيا حکم ځان په ځان کا

په پيری کې د ځوانيه خيال دی هسې
لکه څوک چې د باغ سير په خزان کا

بې درگاهه يې بل ځای د رحمان نشته
په سفر استوگنه څو مسافران کا

۳۴

عاشقان د ناصحانو وينا نه کا
مست هاتي د مهوتا نو پروا نه کا

واړه جور د دې د هر مې قبول دی
که خدای ما له خپله ياره جدا نه کا

چې د گلو پريشانی شوه ور څرگنده
غونچې سر په زانو کښېښود خندا نه کا

و سيلاب ته د ډېدوکې څه اِستاد وی
زړه چه ژاړې سترگې څه رنگ ژړا نه کا

دنيا کل په احمقانو ده ودانه
دانا ځکه بستگې د دنيا نه کا

چې يې زړه دی په هوا پورې تړلی
د حباب عمارت ځکه بقا نه کا

بې هنر دی چې څوک دين په دنيا پلوري
هنرمند سړی دا هسې سودا نه کا

که څوک وايي هوښيار کوم دی وايه دادی
چه بې خدايه نوره مينه په چا نه کا

گدايي که ورپيښيږي دا يې ځای دی
هر بادشاه چه دلجو د گدا نه کا

چې بيدل يې په يوه نگاه رغيږي
څه انصاف دی چې دلبر يې دوا نه کا

هر چې زړه يې وي په يار باندې بايلودی
نوره مينه په چا بې له آشنا نه کا

چه تر غوږ يې وي وينا د آشنا شوې
هغه غوږ هر گز په نوره وينا نه کا

و به نه رسي د يار تر بلند بامه
چه د زړه غولی روښن په ژړا نه کا

زه رحمان د هغه يار په جفا خوښ يم
که اغيار مې خدای له ميانه پيدا نه کا

۳۵

که سړی د خپلې پوهې تقصير نه کا
د خدای کړه به څوک په پوهه تغير نه کا

خاماخا به د تقدير شوي ورپيښ شي
که څوک هېچېرې نظر په تقدير نه کا

د هغو چه بخت بيدار شو غم يې نشته
که هېچېرې بيدارې و شبگير نه کا

دا له خپلې کم فهميه موږ څه وايو
چه فلانی سړی تلاش و تدبير نه کا

دلگيري او خوشحالي که په خپل لاس وای
په خپل لاس به خپلسر هيڅوک دلگير نه کا

معرفت د خدای څرگند دی په هر څه کښې
سترگي وخوره چې څوک همره نظير نه کا

دا نفس په مثال برق صورت فانوس دی
برق به هيڅوک په فانوس کښې اسير نه کا

د دنيا سړي همه واړه درماند دي
کوم بادشاه دی چه منت د وزير نه کا

کوم واده کومه کوژدن ده په جهان کښې
چې فلک يي و آخر وته په وير نه کا

په خوله هر يو سړی اسم د پير اخلي
بارې څه پکار چې نغوته د پير نه کا

دغه نښې د قيامت نه دي نور څه دي
چې د پلار ويل په زوی و تاثير نه کا

هسې چارې له ناصحو واقع کېږي
چې له شرمه يې هيڅ غل وکاسير نه کا

په مرده پسې تکبير وکا روان شي
څوک گمان په ځان د هسې تکبير نه کا

په دنيا پسې درست عمر زهيرېږي
ځان يو دم د خدای دپاره زهير نه کا

دعيال دپاره تير تر سر و مال شي
دل جويي په يوه ټوک د فقير نه کا

رحمان گرم دی چې نارې د هجران اوري
و آشنا وته کاته په ځير ځير نه کا

۳۴

ټر حده تېره شوه په يار پسې ژړا زما — نه ګروهېږي په ژړا سره آشنا زما
که مې هره وينا دُر يا مرغلر شي — لا د غوږ لايقه نه ګڼي وينا زما
په نارو به ما بيدار کړ که اوده وی — باري وينې راته اوده شو دلربا زما
زه مکتوب غوندې په پټه خوله ګويا يم — خاموشي زما تېری کا تر غوغا زما
ګښت د عشق په توده ځمکه آسان نه دی — سمندر بويه چي زيست کا په صحرا زما
دا يار نه دی چي هجران له مانه بېل کړ — روح زما دی چي له تنه دی جدا زما
زه رحمان بې خپله ياره هېڅ نه غواړم — که قبوله وي د خدای په در دعا زما

۳۷

سل ځله که وخوري ناصحان ځيګر زما — بېل به نه کا درد ستا او سر زما
صبرشته په عشق ګښي داخبره څه او زه څوک — نشته د دې چارې توان يو موی قدر زما
ستا له محبته جاروباته وماته عاردی — ولي خاورې نه شي په دا لار بشر زما
واړه معشوقي د عاشقانو خبر اخلي — بې له تا چې نه اخلي يو دم خبر زما
هېڅ اندوه مې نشته بې د ستا له جداييې — نور اندوه به څه وي تر دغه بتر زما
خوب د کورو کلي په نارو زما برهم شو — څه چل دی چي نه شي ستا په زړه اثر زما
درست جهان که ما رحمان لره دلبر شي — چېرې دی دلبره بې تا بل دلبر زما

۳۸

هسې ياد يې همېشه مدام زما — چې اوراد يې په هر صبح و شام زما
هر کلام چې بې دا ستا له ياده وکړم — سل توبې دي په هغه کلام زما
بې له تا که زړه آرام کړم په سل رنګه — نه شي نه شي په هيڅ رنګ آرام زما
ننګ و نام که ستا په مينه له ما درومي — زار شه ستا تر مينې ننګ و نام زما
چه قايم شوم په مقام د عاشقۍ — هېر شو دلته واړه بل مقام زما
څودعشق په ميکده مې داخل نه کړ — پخته نه شو دغه عقل خام زما
نن دې وقت دی که مې آه و فرياد اورې — څو چې خاورې نه دی هر اندام زما
هزار جام و صراحي دې فلک مات کړه — څو به ګرځي په دا دور جام زما
زه رحمان به دا ناکام کوم تر کومه — وايه کله به حاصل شي کام زما

۳۹

چې هر چا ليدلی نه وي يار زما — خير دی دا که وايي بد په کار زما
هر هغه چې وي دلبر زما ليدلی — نه به کا انشاءالله انکار زما
سر زما درګاه د هغه يار عزيز وي — بې له دې لارې نه نشته لار زما
ما بېعشقه بل څه څيز نه دي پېژندلی — چې څه دی هم دا دی واړه کار زما
خدای دې هېڅوک يو له بله آزار نه کا — اې دلبره مه اخله ته آزار زما
ياره ستا په جدايي او په ډېرغم ګښي — سيند د اوښکو درومي په رخسار زما
لوی دی که هلک دی همه واړه ستا خبري کاندې — بل ګفت وګوی نشته په ديار زما
زه رحمان به لاف په عشق کې څه وهمه — خود به ځان څرګند کا انتظار زما

۴۰

تېر شو په دا طمع په درستا عمر زما — ګوندي چېرې کيږدي يو قدم په سر زما
تا وې چې د عشق پياله خوږه ده تر شکرو — وسو په هجران کې دې پيالې ځيګر زما
سل جفا که ووينم په سترګو ستا له لاسه — ستا په جفا نه کيږي هرګز باور زما

يا له ما رحمان سره جفا مه کړه دلبره — يا بې تا راوښيه يو بل دلبر زما

٤١

سرزما سامان زما ځار شه تر جانان زما — ځار شه تر جانان زما سر زما سامان زما
زيان زما نقصان زما واړه د يار هجر دی — واړه د يار هجر دی زيار زما نقصان زما
مښک زما زعفران زما ستا د کوڅې خاورې دي — ستا د کوڅې خاورې دي مښک زما زعفران زما
ګل زما ريحان زما ستا رخسار و زلفې دي — ستا رخسار و زلفې دي ګل زما ريحان زما
فکر زما توان زما ستا په غم کښې نه رسي — ستا په غم کښې نه رسي فکر زما توان زما
آه زما افغان زما هيڅ په تا اثر نه کا — هيڅ په تا اثر نه کا آه زما افغان زما
زړه زما چشمان زما بې تا هيڅ حال نه لري — بې تا هيڅ حال نه لري زړه زما چشمان زما
دا پيران شيخان زما ستا په غم کښې نه رسي — ستا په غم کښې نه رسي دا پيران شيخان زما
باغ زما بوستان زما بې تا ميوه نه نيسي — بې تا ميوه نه نيسي باغ زما بوستان زما
وصل هم هجران زما اې رحمانه خير دی — اې رحمانه خير دی وصل هم هجران زما

٤٢

ستا په څير نه دي خوبان ليدلي ما — نه په غوږو چېرې اوريدلي ما
هيڅ وفا له عاشقانو سره نه کا — دلبران دي واړه ازمايلي ما
چې مې ستا و ښکلي مخ ته دي کتلي — بل يو مخ ته نه دي بيا کتلي ما
د زړه غولی مې نيولی ستا غمونو — نور غمونه دي له زړه ويستلي ما
چې مې کار د عاشقۍ په لاس کښې واخيست — دي له بله کاره لاس وکښلي ما
نورغمونه مې له زړه نه دي وتلي — ستا غمونه په کښې دي کرلي ما
که جفا کوې که جور واړه ځای لري — د ستا جور وجفا واړه دي منلي ما
زه رحمان بې ياره خوب و خندا نه کړم — بې ده نه دي خوب خندا پسندلي ما

تر ابده به يې برخه ملالي وي — له هغو چې زړه ملال شي د اشنا
څو به جفا کړې نه پوهېږم څه بلا شوه — څو به وي تر کومه دا جفا او دا بلا
که يې مال د دنيا ډېر وي — هيڅ پرې نه کاندې پروا

٤٣

چې واده يې کا په ډول او په سرنا — بيا پرې وايي زمانه د وير وينا
که مې هر څو دلبري او دلجويي کا — زه پوهيږم د خپل يار په استغنا
په يوه ګړۍ مې يار هم مې‌آشنا شي — بيا مې بله ګړۍ نه ګڼي آشنا
دا زه خپله تسلي کړم يار يې بولم — څه ياري ده د ناتوان او د توانا
يو زمان يو دم او بې خپله صنمه — زه بهتره تر بقا ګڼم فنا
هر سړی په يوې چارې خدای مشغول کړ — زه مشغول کړم رب د ترکو په ثنا
ما بې عشقه بل هنر نه زده ناصحه — په خندا شه که نادان يم که دانا
چه مې غوږ په نارو نه باسي حيران يم — پروا نه لري که ووړ وي که برنا
بې د يار له ښه ديدنه دې خدای نه کا — د رحمان په زړه کښې بله تمنا

۴۴

چې یې نقش په زړه خیال شي د آشنا
صدقه یې سر و مال شي د آشنا

پس له مرګه به یې تیغ هسې مخ روڼ وي
چې آشنا په تیغ حلال شي د آشنا

په آسمان د آشنایۍ به یې مکان وي
چې زمین غوندې پایمال شي د آشنا

خوشحالي زما د زړه په هغه دم وي
په هر دم چې زړه خوشحال شي د آشنا

روح هغه ساعت داخل ګڼم په تن کښې
چې مې دخل په وصال شي د آشنا

هم هغه یوه ګړۍ را باندې کال وي
چې یوه ګړۍ محال شي د آشنا

نور د هېچا قیل و قال مې پکار نه وي
چې تر غوږ مې قیل و قال شي د آشنا

زرغونه کاندې دانه زما د عیش
چې په زړه مې زرغون خیال شي د آشنا

نه بل څوک زما طبیب بې آشنا شته دی
نه بل څوک به په مثال شي د اشنا

د رحمان نظر په هېچا باندې نه وي
چې نظر یې په جمال شي د آشنا

۴۵

که ماښام تر ستوني ښکته کړې حلوا
سبا خواست کوې له خدایه د ښوروا

په هیڅ حال کښې دې قرار و صبر نه شي
لیونۍ کړې ډېر حرص ډېرې هوا

تمام عمر تر آشنا تر عزیز پورې
لویې ګیډې مختورن کړې هم رسوا

چې په خپلې رسوایۍ دې پروا نه شي
نور به څه کړې په جهان د چا پروا

چې د نفس دپاره لاس و خدای ته نیسې
دا زحمت له خدایه غواړې که دوا

نفس بې شماره عالم پرې یوست و کوهي ته
خدای دې نه کا نابینا د چا پیشوا

په روا په ناروا کله پوهیږي
و چارپای ته څه روا څه ناروا

چارپایان که غوږ و سترګي لري څه شو
په معنا کښې نابینا دي ناشنوا

زه رحمان له هغه علمه پناه غواړم
چه له دینه له مذهبه وي سیوا

۴۶

دل و دین مې په هغه ترک کړه فدا
لا یې نه حسابوي د ځان بها

د ښایست صفت یې څو کوم حیران یم
په هیڅ شان یې مونده نه شي انتها

د صورت له عیبه هسې پاکیزه دی
لکه ذات د ویښته نشته دی په ها

که یې مخ په زلفو پټ وي باک یې نشته
تل به ګنج باندې پراته وي اژدها

لکه نمر هسې جلوه کا په شفق کې
چې په سر کاندې اودنې د سوها

نه پوهیږم چې په کومه لاره درومم
چپ و راست مې رقیبان دي هزارها

خدای دې هسې تنها نه کا څوک په غم کښې
لکه زه یم ستا په غم کښې یک تنها

همېښه د بیلتانه په غم کښې لولم
زه رحمان نعوذ باالله منها

۴۷

که مین يې په خپل یار باندې رښتیا | آواره کړه اول دین، پسې دنیا
په وفا د دلبرانو غلط مه شه ! | دغه قوم دی بې وفا و کبریا
د خوبانو طایفه ده هسې شوخه | چه غوږ نه باسي د چا په واویلا
د ډیر ناز او د ډیر کبر له سببه | عمل نه کا په گفتار د اولیا
دل و دین په یو نگاه د سړي یوسي | نه يې ویره له چا کیږي نه حیا
بل به هسې سرگردان په جهان نه وي | یا عاشق دی یا آسمان دی یا آسیا
ته چې ژغورې سر و مال په عاشقۍ کښې | عاشقي دا هسې چېرې وي ویریا
د جنت له حورو تېر شه که یار غواړې | خدای دې نقد د چا و نه کاندې نسیا
د ساقي له لاسه هسې پیاله نوش کړه | چې دې غوځ کا د زړه خیرې د ریا
چې يې کسب عاشقي شي د دلبرو | نظر نه کاندې په کسب د کیمیا
یو گفتار ورلره بس کاندې رحمانه | څه به هر ساعت پو ښتنه کړي بیا بیا

۴۸

عاشقي مې په زړه وکړ گذر بیا | بیلتانه مې لنبې بلې کړې په سر بیا
که دفترد خپل قسمت مې په خپل لاس وای | ما به ستا له غمه وران کا دا دفتر بیا
ما لا نوم د عاشقۍ اخستی نه و | جدایۍ يې راته جمع کړ لښکر بیا
پس له مرگه به يې بیا له تا قربان کړم | که صورت مې خدای پیدا کړو په محشر بیا
د هجران محنت مې واړه له زړه هېر شو | چې مې ولیده په سترگو ستا بشر بیا
چې آسمان يې مخ پټ کړی په سحاب و | خدای و ما وته څرگند کړو هغه نمر بیا
چې رقیب راته تړلی په زنځیر و | خپل حبیب را باندې پرانیست هغه ور بیا
په یوه نظر يې زړه را څخه یووړ | خدای دې خیر کا چه لا وکړي بل نظر بیا
په وصال يې منت بار اوسه رحمانه | په صدف کې دخل نه وي د گوهر بیا

هغو بیا موند سعادت په دا دنیا     چې یې وکړ قناعت په دا دنیا
نه ملکونه د سلیمان په هزار کاله     نه یوه ګړۍ طاعت په دا دنیا
یو نفس د خدای په یاد واولَی تر دی     نه د درست جهان دولت په دا دنیا
په دنیا کښې لوټ هغو عالمو وکړ     چې یې وکړعبادت په دا دنیا
که نعمت دی خو طاعت او عبادت دی     ګڼه نشته بل نعمت په دا دنیا
که محنت که مشقت دی خو د دین دی     پکار نه دی بل نعمت په دا دنیا
بې له خدایه هر څه دي واړه فاني دي     که لذت دی که زینت په دا دنیا
که بادشاه وي آخرخاورو لره درومي     څه عزت دی څه حرمت په دا دنیا
له هغه به زیات نادان په جهان نه وي     هر چه غواړي فراغت په دا دنیا
ته چې څو وقته فرصت په دنیا غواړې     چا موندلي دی فرصت په دا دنیا
عمارت په سر د ریګ روان کاندي     هر چه کاندي عمارت په دا دنیا
د مستانو تر لغزشه څه کم نه وي     د سړي استقامت په دا دنیا
هر ژوندی چه د مرده په قبر ورشي     بس دی هومره نصیحت په دا دنیا
په روانو اوبو ورشه عمر ګوره     ډیر دی هومره اشارت په دا دنیا
دا پاخه پاخه سرایونه محلونه     خود به وران شي عاقبت په دا دنیا
وړې ستړګي د آسمان څه هسي نه دي     چې څوک پریږدي سلامت په دا دنیا
هر چې راشي همه واړه ځني درومي     مسافر دی هر صورت په دا دنیا
ریاضت په قیامت نه شي مرد هغه دی     چې یې وکړ ریاضت په دا دنیا
هم په دا خوی و خصلت به سبا پاڅي     خدای څوک مه کړه بد خصلت په دا دنیا
هم هغه به یې خرمن وي پس له مرګه     هرچه کاندي زراعت په دا دنیا
که هغه جهان په دا کښې لیدای نه شي     زه یې وینم علامت په دا دنیا
په قیامت به ښه توښه و بله نه شي     ما لیدلی دی قیامت په دا دنیا
امانت به د لحد په میان کښې پروت وي     هرچه اوسي امانت په دا دنیا
نیک عمل حضور جنت دی طاعت بویه     چه حاصل کا څوک جنت په دا دنیا
نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خویونه     هم جنت دی هم راحت په دا دنیا
ضدیت د سړي عمر په عذاب کا     پکار نه دی ضدیت په دا دنیا
لاس په سر په سینه ایښی و هرچاته     همدغه دی شرافت په دا دنیا
که بلنده مرتبه د چا پکار وي     لوی مقام دی عدالت په دا دنیا
بل ارمان به له جهانه یووړ نه شي     مګر مهر محبت په دا دنیا
د هغه جهان سودا واړه دلی ده     که څوک کاندي تجارت په دا دنیا
که طالع د سړي نه وي جار وتلی     هیڅ پټ نه دی حقیقت په دا دنیا
نیک له نیکو سره بویه بد له بدو     که څوک غواړي ولایت په دا دنیا
ولایت دی خدای هغو لره ورکړی     چې یې ورک کړ سکونت په دا دنیا
که تمامه دنیا واړه سره یو شي     نور به نه کا خپل قسمت په دا دنیا
که څوک مرد دی خو هغه دی په دنیا کښې     هرچې نه لري حاجت په دا دنیا
چې رغبت یې د جمله بلاوو سر دی     څوک به څه کاندي رغبت په دا دنیا
په رحمن باندي دا عمر هسي تېر شو     لکه تېر شي یو ساعت په دا دنیا

٥٠

هوښيار مه ګڼه هوښيار د دې دنيا … بې وقوف دی وقوف دار ددې دنيا
رو ښنايي په هغو زړونو ده حرامه … چې پرې کښيني ګرد غبار د دې دنيا
پوچ ګويي ده چې يې اهل د دنيا کا … هر کلام و هر ګفتار د دې دنيا
د طفلانو په څېر واړه خاکبازي کړي … هر چې کاندي کار و بار د دې دنيا
واړه ډکي خولې د پيو هلکان دي … کار ديده او پخته کار د دې دنيا
همېشه به بې وقوف او بې شعور وي … چې مخمور وي په خمار د دې دنيا
د شرابو هم لا هومره مستي نه وي … لکه مست وي خمر خوار د دې دنيا
هر بيمار لره داروشته په جهان کښې … دارو نه لري بيمار د دې دنيا
د هر سوي علاج وشي په جهان کښې … مګر سوی په شرار د دې دنيا
هر چې واچوې و اور ته واړه سوځي … موړ به نشي طلبګار د دې دنيا
ګرفتار يې همېشه په غم کي ډوب وي … هيڅوک مه شه ګرفتار د دې دنيا
تل به پروت وي په ظلمت و په تور تم کښې … چې اسير وي په کفار د دې دنيا
په مسلمو کښې خاصه مسلم هغه دی … چې يې وشلاوه زنار د دې دنيا
څه و بت و ته سجده څه و دنيا ته … بت پرست دی پرستار ددې دنيا
تن يې پاتې شي بې سره سر يې لاړ شي … سردار کله دی سردار د دې دنيا
زوی و لونه يتيمان کا ځني درومي … بې وفا دي مور و پلار د دې دنيا
همېشه به يې يو پنډ د غم په سر وي … چې په سر يې وي دستار د دې دنيا
واړه غم دی که يې پېرې که يې پلورې … نور څه نشته په بازار د دې دنيا
همګي واړه ټګان دي ټګي کاندي … فروشنده و خريدار د دې دنيا
په دنيا به مينه نه کاندي هېڅېرې … چه خبروي په اضرار د دې دنيا
چې نظر د چا په دين و په ايمان وي … هغه نه کا انتظار د دې دنيا
لوی هلک يې همه واړه مکاران دي … څه ويسا ده په مکار د دې دنيا
آشنايان يې همه واړه مکاران دي … يار دی چېرې په ديار د دې دنيا
چې پيدا شي همګي واړه فنا شي … راشه وګوره ناتار د دې دنيا
چې ويريږي له کوهۍ او له ګړنګه … هغه نه درومي په لار د دې دنيا
هر سړي لره چې ورشي ځني درومي … ما ليدلی دی رفتار د دې دنيا
په يوه ګړۍ بهار وي بيا خزان شي … بقا نه لري بهار ددې دنيا
که هزار هزار پښتۍ ورته کيږدې … بې بنياده دی ديوار د دې دنيا
که د اوسپنو حصار تر ځان چاپېر کړې … ښيښه وګڼه حصار د دې دنيا
لکه سيوری د آفتاب په مخ کښې ګرځي … نشته هېچرې قرار د دې دنيا
هېڅ ګمان د بهترۍ ورباندي مه کړه … کهتري ده وار په وارد دې دنيا
بې مقراضه غوڅوي د سړی عمر … هم دا ليل وهم نهار د دې دنيا
پس له مرګه به حساب له سړي غو ښت شي … په انداز و په مقدار د دې دنيا
عاقبت خو به يو موټی شي د خاورو … ګلعذارو ګل رخسار د دې دنيا
برابر به له ګدايه سره پاځي … شهزاده و شهريار د دې دنيا
پاس به داغ وي د لئيم په ټټر باندي … هر درم و هر دينار د دې دنيا
د قانع تر قناعته صدقه شه … هم درهم اوهم دينار د دې دنيا
پس له مرګه به همه واړه مظلوم وي … ظالمان و ستمګار د دې دنيا
تر قيامت به دغه لس او دغه شل وي … پوره نه کړ هېچا شمار د دې دنيا
چې ايام پرې د کفن د غسل ورشي … بې پردې شي پرده دار د دې دنيا

په تخته باندې بيرون شي له حجابه    شرمناک او شرمسار د دې دنيا
تر هر چا به پيغمبر څخه وه ډيره    که څه قرب واى يا وقار د دې دنيا
يو فساد به يې بيان په رحمان نه شي    فسادونه دي بسيار ددې دنيا

## ب

له فراقه چي يې آه کړم سوک په سترګو    يو لستونى مي ګرداب شي بل ګرداب
هومره تاو د بېلتانه راباندې زور شي    چې حساب يې بيان نه شي په کتاب

۱

هسې مست يم ستا د شونډو په شراب    چې به نه وي بل داهسې مست خراب
لاس د ستا په مينه اچوم و ګل ته    لکه بوټي ته لاس اچوي غرقاب
دا سرخي او سفيدي ده ستا په مخ کښې    که زما په مخ باران دى د خوناب
څه اثر به زما اوښکې په تا کاندي    لا تازه شي اور په اوښکو د کباب
عاشقان دي سترګې روڼې کا په عشق کښې    دا خواب نه دى منزل ګاه دى د سيلاب
ما چې خال د ستا د وروځو په ميان وليد    نه بل هسې رنګ امام شته نه محراب
ښاپيرۍ چې ليدى نه شي سبب دا دى    مخ د ستا له غمه نغاړي په حجاب
چې سبا شي ستا تر مخ پوري شرميږي    ځکه زيست په توره شپه کاندي ماهتاب
حجاب واخله مخ کړه تور د هغو خلقو    چه تحسين کا ستا په دور د آفتاب
هسې نه چه زه دلبر وتا ته⇔وايم    خداى دې تا لره درکړى دا خطاب
ستا د مخ په ورق باندي خط و خال دى    د مصحف په صحيفو باندې اعراب
ستا د حسن حساب هېڅ په رحمان نه شي    هم په دا چه بې حساب دى بې حساب
يو کتاب په سرِبن کي چا ونه کړ    بې رحمانه چې يې وکړ دا کتاب

۲

چي يې وليد د ستا حسن بې حساب    له دې قصده تاو پيدا شو له آفتاب
ستا له غم مي سترغلى سرې سرې ناغې شوې    يا خيمې دي سياه پوش سره طناب
په آرزو و دي د نرګس سترګي څلور سوې    غونچه سره د زړه په وينو شوه غرقاب
که دي زلفې په مخ پيچ وتاب شوې ښايي    وېښته څه طاقت لري د اور له تاب
زه چې خداى د ستا له غم سره آشنا کړم    خوشحالي مې نور نايابه شوه ناياب
سترغلي مې د فراق په ژړا سره شوو    د سبزي اثر يې پاڅېده له آب
مه، خورشيد چې دې ښايست پورې شرمېږي    ځکه مخ پناه کوي تر کوه قاب
زه دې پېژنم په اصل کې خاکي يې    ځان به څو ښندې په ګوتي له تراب
څو دې خيال د آشنا ګرځي په لېمه کې    خبر زده کړه ته د اوښکو له سېلاب
د رحمان بخت به هاله له خوبه ويښ شي    که ته سترګي ورته پورته کړې له خواب

لاس مې وتړي د زلفو په طناب
بیا مي وپلوري د سترګو په قصاب

هسې آب یې دی د دوو سترګو په تیغ کښې
چې بې سره په سر نه لري حباب

چې توسن د فلك زین کاندي له نازه
دا هلال یې په ځای را وشي د رکاب

په درګاه یې درویزه کاندي د حسن
کندولی په لاس سپوږمیه هم آفتاب

چې را یادې یې سرې شونډې سور پیزوان کړم
له چشمانو مي بهېږي سره شهاب

له فراقه چې یې آه کړم سوک په سترګو
یو لستونې مي ګرداب (شي) بل ګردآب

چې د مخ و آب و تاب ته یې نظر کړم
راته هېڅ شي د ګلونو آب و تاب

چې نسیم یې د زلفینو را پیدا شي
درست مي ډوب کاندي په مښک و په ګلاب

چې د سپي آواز یې واورم هسې خوښ یم
لکه څوك په نغمه خوښ وي د رباب

ما وې مخ یې ګوندي ووینم په خوب کښې
بارې چیرې شي بې یاره د چا خواب

په غزل کښې خو دوه بیته انتخاب وي
د رحمان تمام غزل دی انتخاب

۴

هر مطرب چه غوږۍ تاو کا د رباب
په دا تاو کې زما زړه کاندي کباب

چه سامع یې په نغمه په ترانه شم
دیوانه شم ګریوان څیرې مست خراب

هم یې تار هم یې ګفتار هسې اثر کا
چې هېڅوک یې نه طاقت لري نه تاب

یو یې ساز بل یې آواز وي د لښتیو
دریم شعر پرې آغاز کا انتخاب

څلورم یې یو ساقي تر څنګه ناست وي
چې مخی یې نه آفتاب وي نه مهتاب

دا څلور واړه فتنې په څلور کنجه
او پنځم یې صراحي د می ناب

شپږم وخت د نو بهار اووم ځواني وي
اتم شغل د کباب نهم رباب

چې دا همره آفتونه سره ټول شي
ترو څوك څرنګه کاندي اجتناب

چې دا هسې دلبران پرې اثر نه کا
یا به دیو یا به دیوال وي یا دواب

را څرګند به شي پرهیز د پرهیزګارو
که قادر شي په شاهد او په شراب

زه رحمان له ریا زهده پناه غواړم
د ریا زهد عذاب دی هم عتاب

۵

ورقونه لټوم د هر مکتوب
په کښې غواړم خال و خط د خپل محبوب

یا تنور دی یا دکان د آهنګرو
چې په عشق کښې تصور کړم خپل قلوب

په خندا خندا ځان اچوي واورته
خدای څوك مه کړه په جذبه د عشق مجذوب

زه چې غم د مهرویانو را په زړه کړم
له دې غمه لاړ شي زړه را څخه ډوب

ګوره څه رنګ عشق آسان کړه و عاشق ته
دا مشکل مشقتونه د ایوب

په ژړا ژړا تر هسې حده راغی
چه ځان ړوند کړ په یوسف پسې یعقوب

عشق دی دا چې معشوقه شوه و عاشق ته
نه رخسار د مهرویانو په اسلوب

هغه څه یو ښتي له هجره له وصاله
چې یخپله هم محب شي هم محبوب

چې نظر یې له صورته په معني کړو
و رحمان وته یکسان شو زشت و خوب

۶

چې نظر کړم په قسمت او په نصيب
راته هېڅ شي خپل تالاش و خپل ترتيب

مگر خود پخپله خدای د چا طبيب شي
گنه نشته په جهان کښې بل طبيب

را څرگند دی سود و زيان د رقيبانو
خدای دې نه کاندي خپل يار د چا رقيب

چې خپل يار د چا رقيب شي مثال دا دی
لکه څوك چې په وطن کښې شي غريب

چې غريب شي په وطن کښې فرق يې نه وي
كه فرسنگ يې وي ترميانه كه جريب

ما په عشق کښې هېڅ حاصل نه کړه بې غمه
هر چې وايي واړه ښه وايي اديب

د ښمن هم د سړي كله كله دوست شي
دوستي نه کا د رحمان سره حبيب

٧

زه په سل رنگه راغب
ته په سل رنگه غايب

دا به څه رنگ شي دلبره
چه زه مست يم ته تايب

كه له جوره دې فرياد کړم
دا هم نه دی مناسب

كه څه وايم نه مې رسي
زه مغلوب يم ته غالب

څه سيالي برابري ده
د مطلوب او د طالب

دا ستا مهر و محبت کړ
خدای په ما باندې واجب

درد و غم دې همره نه دی
چې يې وکښم په کاتب

جدايي ده ډيره سخته
د ارواح او د قالب

چې مجنون په ځنکدن شو
زه يې پرېښودم نايب

وصيت يې راته وکړو
په څو رنگه عجايب

چه روزي دې شه رحمانه
زما واړه مراتب

## ت

١

كه مې وشي له دلبره ملاقات
بيا به نه ځم له دې دره په حيات

پس له دې مې دې استوگنه خدای نصيب کا
په دا در کښې كه حيات وي كه ممات

ځای لري كه زه خپل يار وته سجده کړم
هغه يار زما قبله دی د حاجات

د خپل يار تر لعلو لبو به ئې ځار کړم
كه شکرې وي كه قند وي كه نبات

دا زما د يار جلوه ده چې ليده شي
لکه نمر په صومعه د سومنات

تر ما لا په دلبرانو ډير مين دی
چې خبرې کړي د کشف و کرامات

د ريا له زاهدي زما توبه ده
چې يې کاندي څوك په رسم او په عادات

په ورځ پند ونصيحت وايې و بل ته
په شپه ناست وي د مغان په خرابات

دين يط دام وي د دنيا په لارکې ايښی
پرې را اړوي وحشيان د مخلوقات

د هغو په لور يې سترگې وي ختلې
چه په لاس يې سرسايه وي يا زکات

زه رحمان له هسې اهله پناه غواړم
هر چې لاف کا په خلاف د مقامات

۲

آفرین د عاشقانو په همت
چې په عشق کښې یك انداز وي یك جهت

نه یې هېچېرې تغیر و نه تبدیل وي
که تمام جهان پرې وایې ملامت

که څوك سل نصیحتونه ورته کاندي
غوږ یې نه وي د هېچا په نصیحت

چې په یار پسې تر ځان و جهان تېر شي
څوك کولی شي دا هسې مشقت

که تمام عمر یې یار په سترګو ناست وي
تمام عمر ورښکارېږی یو ساعت

که یو دم شي هغه یار ور څخه لري
هغه دم شي ورته عمر د قیامت

که دوزخ لره د یار په مینه ورومي
دوزخ هم ورته جلوه کا د جنت

د عشق لار د توکل په پښوغوڅېږي
نه په پښود ریاضت و دیانت

په تدبیر او په تالاش کله مونده شي
چې موقوف وي هغه کار په عنایت

د عاشق خاطر له غیره پاکیزه دی
د دریاب په مخ کښې نه وي نجاست

خدای چې زړه د مطلوب کاڼی کړ رحمانه
کاڼی پریووت د طالب په عمارت

## ث

۱

د وصال شپه مې بدله په بیلتون شوه الغیاث
دقیامت خواري را پېښه په ژوندون شوه الغیاث

ما لا طمع د وصال د نعمتونو ترې کوله
نا ګهان کاسه نسکوره د ګردون شوه الغیاث

هغه چار چې مې په لاس وه زه پرې نه وم پوهیدلی
اوس چې پوه شوم له اختیاره مې بیرون شوه الغیاث

د وصال په طمع طوق د جدایی شه را په غاړه
هغه طمع چې زما وه اوس طاعون شوه الغیاث

په حکمت په عقل پیتی د عشق څوك اخستي نه شي
په دا کار کښې ماته ملا د افلاطون شوه الغیاث

ما رحمان د یار وصال په آسانی موندلی نه دی
زرد رویي مې سرخرویی په ځیګر خون شوه الغیاث

۲

یار یاري را سره نه که الغیاث
نه ئي ترس شي نه یې کرکه الغیاث

سرو و مال واړه زما و دل آرام ته
نه ارزیږي په کنجکه الغیاث

په حملو حملو مې زړه وړي نه پوهیږم
افریدی ده که خټکه الغیاث

بیلتانه یې پېښور راته تنور کړ
له خیبره تر اټکه الغیاث

خو چه را کاږي چوګان په مخ د زلفو
ګوی زما دا خراب زړه که الغیاث

هیڅ سبب یې موندی نه شي جفا کاندي
نه پوهیږم چه په څه که الغیاث

په اخلاص او په راستی ورته ولاړ یم
یار جفا همره په څه که الغیاث

سل خبرې که له صدقه ورته وکړم
یار یوه را سره نه که الغیاث

چې مې ویني له رقیبه سره خاندي
په ژړا مې لېمه سره که الغیاث

زه رحمان مدام د یار په رضا درومم
یار په خپله رضا تله که الغیاث

۳

چې ویلي مې له تا دی دا حدیث
سر نامه د هر انشا دی دا حدیث

چې آغازمې کړه په مدحه د خوبانو
ځکه گنج بې بها دی دا حدیث

په ثنا د دل پسندو دلرباوو
دل پسند و دل ربا دی دا حدیث

لکه باد د صبحدم چې غنچه وا کا
هسې رنگه دلکشا دی دا حدیث

چې اوصاف مې د سرو شنډو په کښې راوړه
خوږ تر قند و تر حلوا دی دا حدیث

نه پوهېږم چې اوبه دي د حیاتو
که نفس د مسیحا دی دا حدیث

د غونډ ژبو شاعرانو د خولې نه دی
ځکه هسې رنگ صفا دی دا حدیث

ستا و مخ ته که څوك شمس و قمر وایئ
دروغ نه دي په رښتیا دی دا حدیث

که څوك وایئ چه چا کړی دا حدیث دی
رحمان وایئ چه زما دی دا حدیث

ج

چې برهم کا عاشقي د چا مزاج
حکیمان یې درمانده شي په علاج

په آشنا پسې تل ژاړي په دوه سترگو
د اوبو په ځای خوناب کاندي اخراج

دواړه لاس یې وي له دواړو کونو وللي
ډوب وي تل د عاشقیه په امواج

په هغو کښې چې څه بوي د عاشقۍ وي
په کښې نه وي بوی د رسم و د رواج

ابراهیم ادهم څه هسې نادان نه و
چې نظر یې یا په تخت و یا په تاج

مجنون هسې رنگ مین په لیلي نه و
چې په نورو یې موقوف وي احتیاج

لیونتوب له لیونو تلونی نه دی
که یې راج په خونه ورشي که تاراج

که یې سر لکه منصور غوندې په دار شي
دغه دار دی و رحمان وته معراج

# ح

١

په طلب د ماهرویانو سرگردان دی زما روح
لکه باد د گل په بوی پسې پریشان دی زما روح

ستا د حسن و آفتاب ته چې سپارلی ځان شبنم دی
لکه صبح د ژړا په ځای خندان دی زما روح

چې مې ولیده ستا د جمال عکس په خپل ځان کښې
هم په دا د آیني په څېر حیران دی زما روح

ستا د مخ د آییني له برکته زما جانه
همیشه لکه طوطي هسې ویان دی زما روح

لکه رنگ د میو نابو چې لیده شي په ښیښه کې
هسې رنگ په ضعیف تن کښې نمایان دی زما روح

منتظر دې د وصال د گلستان یم تل تر تله
سر تر پایه د شبنم په څېر چشمان دی زما روح

چه حاصله مې له حسنه روښنایي شوه په طلب کښې
شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان دی زما روح

ستا په زلفو په رخسار پسې رحمان یم بې وطنه
مسافر د هندوستان و خراسان دی زما روح

٢

ستا وصال دی را بخښلی زما روح
ستا هجران دی را نیولی زما روح

ستا په مخ پسې یې مخ ونیو راهي شو
له صورته دی وتلی زما روح

چې هرگز مَلَكُ‌الموت پرې نه پوپوهېږي
هسې شان دی تا وکښلی زما روح

ځان یې هسې ستا په مینه پسې ورك کړ
چېهېچا نه دی موندلی زما روح

که وي هم به تا څخه وي که خدای کاندي
نه دی بلې خوا ته تللی زما روح

بلبل نه دی دا چه الوزي په گلو
ستا په لور دی الوتلی زما روح

چې یې خاورې کړ صورت د ستا په در کښې
سر تر عرشه دی وکښلی زما روح

ته یې پیژنې چې څه دی یا څه نه دی
نور چا نه دی پېژندلی زما روح

زه رحمان له خپله ځانه خبر نه یم
چې په څه رنگ دی وکښلی زما روح

## خ

۱

ما سحر سبا لیدلی و د چا مخ
چې مې درسته ورځ ونه لیده دا ستا مخ

دا خو مخ زما و تا وته خدای هېڅ کړ
ګنه هر یو آشنا ګوري د آشنا مخ

ډیر مخونه د جفا دي را څرګند کړه
لا به کله را څرګند کړي د وفا مخ

څو د مرګ په تماچه اوښتی نه دی
اوښتونی له تا مه ګڼه زما مخ

زه په تا پسې راغلی په دا مخ یم
که ته نه وای ما به څه کول په دا مخ

ما به څه لره په تا پسې ژړا کړه
که موندی شوی بل د ستا په څیر زیبا مخ

د رقیب طمع مې نه وه ستا په در کښې
په جنت کې دې را وښود د بلا مخ

زه به څه رنګ د رقیب و مخ ته ګورم
کله اهل سنت ګوري د ترسا مخ

د چکنا چکنۍ بیلتون په نیمه شپه وي
ستا زما په حال غماز شه د سبا مخ

رحمان ستا په مخ دا ورانه دنیا ګوري
خدای بې تا ور څرګند مه کړه د دنیا مخ

۲

کله شو لا کله خریدار یم ستا د مخ
تېر تر سر و ماله په بازار یم ستا د مخ

بې د ستا له مخه نور مي هيڅ په مخ کښې نشته
هسې رنګ نتلی په ناتار یم ستا د مخ

هيڅ په سترګو نه وینم دا خپل صورت چې کوم دی
ډوب تر هسې حده په انوار یم ستا د مخ

درد و آه وکاږم بهانه د تماکو کړم
سوی لوغړن مدام په نار یم ستا د مخ

نور وګړي واړه همګي د دنیا کار کا
زه همېشه غرق په انتظار یم ستا د مخ

شکر چې یې خلاص کړم د نور خلقو له منته
سر په سجده ایښی منت بار یم ستا د مخ

هره خوا چې درومم زه رحمان د زړه په سېل
بل مطلب مې نشته طلبګار یم ستا د مخ

۳

چې پیدا شو ستا چشمان دا هسې شوخ
نور به نه وي مردمان دا هسې شوخ

کج زلفان کج ابروان لکه چې ستا دي
نه لړم شته نه ماران دا هسې شوخ

ډیرغمونه شوخ شوخ شته په دا دنیا کښې
ولې نه لکه هجران دا هسې شوخ

مګر دیو وي چې بې غم وي په هجران کښې
ګڼه نه به وي انسان دا هسې شوخ

دا فتنې او فسادونه به وو چېرې
که پیدا نه وی آسمان دا هسې شوخ

د آشنا له غمه زړه د آشنا نه چوي
پنځولی خدای جهان دا هسې شوخ

چې یوسف یې د دنیا په متاع ورکړ
پیدا مه شه بل کاروان دا هسې شوخ

چې بوسه له یاره غواړي بې ادبه
خدای دې نه کاندي رحمان دا هسې شوخ

## د

۱

پادشاهانو که قصرونه کړل بنیاد
ما د عشق عمارتونه کړل آباد

نوم د کوم یوه بادشاه هسې یادیږي
لکه نوم دی د مجنون او د فرهاد

عشق عاشق لره یو هسې پیر استاد دی
چې به نه وي بل دا هسې پیر استاد

دغه واړه کرامات د عاشقۍ دي
چې څوك قطب کا څوك غوث کا څوك اوتاد

د دنیا چارې همه واړه فاني دي
څوك به څه کا په دا چارو اعتماد

لکه سیوری چه د نمر په مخ کښې ګرځي
نه استوګنه چېرته کاندي نه استاد

هېڅ وفا یې له هېچا سره و نه کړه
که جمشید و که بهمن و که قباد

که جمشید و که بهمن که کی قباد و
که نمرود و که فرعون و که شداد

رسولي یې تر مراده هېڅوک نه دي
همه واړه هسې پاتي شول نامراد

نه چا ختم نه دعا وربسې وکړه
که یې آل که یې عیال و که اولاد

زه رحمان د زمانې له جوره درومم
خپل صاحب لره په داد و په فریاد

۲

زه که لافې د وفا کوم هر چند
هغه یار مي باور نه کا په سوګند

زه بې یاره هسې زیست کړم په جهان کښې
لکه زیست وي په مجمر کښي د سپند

آبرويي د طالبانو خپل مطلب وي
آبرويي د غلامانو خپل خاوند

لکه یار مې سر بلند دی په جهان کښې
په تاثیر یې هسې زه شوم سر بلند

لکه یار چې مې څرګند دی په جهان کښې
زه هم هسې په دا دور کښې یم څرګند

چې مې مدحه د خوبانو کړه آغازه
هر کلام مې د لپذیر شه دل پسند

لکه خوند لري زما خوږې خبرې
په شکرو کښې هم نشته هسې خوند

هغه قند چې خدای زما په خوله کې کېښود
حلوایانو څخه نشته هسې قند

لکه زه چې سخندان و هنرمند یم
بل به نه وي سخندان و هنرمند

په اشعار کښې قوتناك لکه زمری یم
ولې نه یم د زمري په څیر ګزند

هم په مدح ښه پوهېږم هم په هجوه
ولې نه یم په دا چارو ډیر خورسند

بې له عشقه که مې عیب که مې هنر دی
ما غوڅ کړی دی له ځانه بل پیوند

زه عاشق یم سروکار مې دی له عشقه
نه خلیل نه داودزی یم نه مهمند

چې و ما ته نصیحت کا څوك په عشق کښې
ګویا پلار ته نصیحت کاندي فرزند

هر سړی چې آیینه په لاس کښط خاندي
ګویا کاندي په خپل ځان پوري ریشخند

رنګ ریزان دي اول خپلې ږیرې رنګ کا
بیا هاله دي و رحمان ته وایي پند

## ۳

که قاصد یې د مقصود    آواره کړه زیان وسود
هرچې درشي ستا په وړاندې    واړه وګڼه بهبود
هرچې دي سوا له خدایه    واړه وګڼه نابود
رضا پاسله وقضا ته    مدام خوښ اوسه خشنود
و هستئ وته جلوه کا    لکه ابر هسې دود
ته وځان وته نظر کړه    چې قبول یې که مردود
ننداړچې د خپل صورت شه    چې مسلم یې که جهود
امتي د ابراهیم شه    تابع مه شه د نمرود
د غفلت له خوبه پاڅه    څوبه اوسې خواب آلود
مقید و مشغول اوسه    په دعا و په درود
آسمان طوره په رکوع شه    زمین طوره په سجود
ټول اشیا د خدای ثنا کا    په نغمه لکه داوود
که بیدار شې خود به واورې    په هر لوري دا سرود
که ایاز غوندې بنده شې    نور به ناز کړې په محمود
ټول اسباب د ښو د بدو    مهیا دي هم موجود
که دانایې و بله بیل کړه    فرموده و نافرمود
چې سپند نه شې په اور کښې    نه وي خوند دبوی د عود
ځان له غشه پاکیزه کړه    لکه بحر نامعدود
هلاک ځکه شو رحمانه    چې یې پاک نه شو وجود
رحمان بې د یار له ذِکره    نه زده بل ګفت اوشنود

## ډ

چې مې یار ولید په سیمه د اغیار ګډ    له غیرته مې لیمه شوه په خونبار ګډ
دغه حق د بلبلانو په جانب دی    خدای دې نه کا مښګیرك په لاله زار ګډ
زه په وصل کښې هجران هسې پیځمه    لکه څوك چه خالي لاس وي په بازار ګډ
په امید د زلفو ونښتم په دام کښې    روهیلی وم ساده دل په هندوبار ګډ
د دیدن په ګدایي کښې مې ننګ نه شي    درویزه کړم د بتانو په بازار ګډ
د وفا د ګلو پانې په کښې نشته    کاشکي مه وای د دې دهر په ګلزار ګډ
زړه مې بې خپله نګاره آرام نه کا    که هر څو یې کړم په نقش و په نګار ګډ
که پخوا تر آشنایي بیلتون لیدی شوای    هېڅ بنده د خدای به نه ؤ په دا کار ګډ
سخت سفر د عاشقئ څوک او زه څوک    خدای ناڅاپه پرې راګډ کړم په دا لار ګډ
زه رحمان یې د فردوس له غمه خلاص کړم    چې په کلي په کوځه شوم د خپل یار ګډ

## ر

١

په بزرګی د هغه پاك پرودګار
موقوف مه شه په سړي دسړي کار

په سړي چې د سړي غرض موقوف شي
نور بې آبه بې حرمته شي روزګار

احتیاج هسې بلا ده په جهان کښې
چې پلار زوی کا د زوی او زوی د پلار

که د پیر په خپل مرید باندې غرض وي
هېڅ یې نه وي په مرید باندې وقار

زمانه هسې په مخه ده بې رویه
چې غالب کا په اسلام باندې کفار

په ساعت کښې ګدا شاه کا شاه ګدا کا
دا فلك ځکه باله شي کج رفتار

چې همه عمر ئې تاج وي په سر ایښی
ور په سر کاندې ګیډئ د خس و خار

چه قادر نه په درم و په دینار وي
په هغو باندې ګنجونه کا انبار

زماني د رحمان زړه دی کباب کړی
له احواله ئي څوك نه دي خبردار

٢

هومره اوښکې مې بهېږي په رخسار
چې غرقاب مې هم ګریوان دی همکنار

هغه یار مې هسې ناست د زړه په سر دی
لکه ایښی چې چا ګل وي په دستار

که څوك وایي چې مار کله په کټ خیژي
زه خوړلي یم په کټ د زلفو مار

خو د یار بیمارې سترګې خدای خوني کړې
ګڼه خون کله کولی شي بیمار

که په دار شم زه د یار له لاسه خوښ یم
سروقد دی زما یار زما دلدار

بس که دا چه زه په یار پسېغوځ غوځ یم
خدای دي نه کا لکه زه یم هسې یار

هومره جور لکه یار له ما سره کا
یاد مې نه دی هومره جور د اغیار

دلبران کوډې جادو کړي زړونه اخلي
هغه وایه چېبې کوډو وي دلدار

چې د زړونو له نمانځلو بې پروا دي
تروکه زړه د سړي یوسي څه پکار

په ګریوان یې تل د اوښکو باران اوري
نه ورکیږي د رحمان د زړه غبار

٣

چې دي زړه پوري تړلی استوار
دا جهان دي د نیکه دی که د پلار؟

ته خپل پلار و نیکه وګوره چې څه شول
هسې ستا دی هم په دوی پسې رفتار

تل ړومبی د ورستي پل دی پرې تېرېږي
کړی نه دی چا په پله باندې قرار

هسې نه چې زه یوازې تا ته وایم
راغله لاړه ستا په طور صد هزار

دعوی مه کړه په ناحق به یې خپل نه کړې
پردی ښهر پردی ملك پردی دیار

چې استوګنه په پردي وطن کښې کاندي
هغه نه لري د هېڅ واك و اختیار

که هزار قسمه وخوري په یو کار کښې
نه کا څوك په مسافرو اعتبار

چې سبا شګفته کیږي مابښام رژي
څه امید دی په ګلونو د ګلزار

که دې ورور که دط عزیز وي که دې یار وي
مه یې ورور مه یې عزیز ګڼه مه یار

چې پیدا شي همګي واړه فنا شي
اې رحمانه دا جهان دی دا یې کار

۴

څو جفا قبوله نه کړي د اغیار و به نه ویني په سترګو مخ د یار
چي اول یې خار زرغون شي په پهلو کښي غنچه هله شګفته شي په ګلزار
جنت چا په رضایت موندلی نه دی ولي بویه هر بنده لره خپل کار
که مونده شوی خوشخویي په خوشبویي کښي پروت به نه و په چندن باندې ښامار
آب تر لعلو د لاله ګلونو ډېر دی! بخت دی دا چي څوك عزیز کاندي څوك خوار
هسې زیب کا په بیاض د رحمان شعر لکه زلفې د خوبانو په رخسار

۵

څوك دې را کاندي قسم په کردګار که درم لرم په کور کښې یا دینار
زه دینار و درم نه لرم په کور کښي ولي نور عالم مې بولي دنیا دار
هم په دا چې نه له ځایه چېرته خوځم نه د هېڅ یوه مخلوق یم منت بار
نه مي ښکته ملك لیدلی دی نه پورته خبر نه یم په یمین و په یسار
آب و خور لکه آسیا په ځای را رسي په خپل کور کښې مي سکون دی هم رفتار
لکه ونه مستقیم په خپل مکان یم که خزان را باندې راشي که بهار
توکل مې لاس پښې سره کړه په نکریزو چه په ځای یې کښېنولی یم قرار
چې زما په باب دي کښلي دي رارسي که راحت دی که زحمت دی وار په وار
چې اتلس زره قومه یې پیدا کړل مربي مې دی هغه پروردګار
کار همه په اراده د خدای موقوف دی هېڅ موقوف نه دی د چا په انتظار
غم به هېچېرې و نه کا په دنیا کښې که څه کیږي د رحمان په اختیار

۶

دغه یار دی دا اغیار! دغه ګل دی دغه خار
دغه ګل دی دغه خار دی دا منصور دی دغه دار
دا رقیب دی دا حبیب دی دغه ګنج دی دغه مار
دغه عشق دی دغه عقل دغه غم دی دا غمخوار
دا هجران دی دا وصال دی دا خزان دی دا بهار
دا طاعت دا معصیت دی دغه نور دی دغه نار
دا عالِم دی دا جاهل دی دا خفته دی دا بېدار
دا رحمان دی دا جانان دی دا طبیب دی دا بیمار

۷

هرچې نه وی خوارو زار په طلب د خپل دلدار
تر پړوني یې صدقه شه دهغه عاشق دستار
هزار حیف دی هزار حیف دی هزار څه لا صد هزار
چې عاشق په عاشقی کښې نه حلال وي نه مردار
نه پتنګ د خپل څراغ وي نه بلبل د خپل ګلزار
نه مجنون غوندې رسوا وي نه منصور غوندې په دار
دواړه نه کیږي رحمانه یا به یار شي یا بیزار

۸

دا څه مخ دي منور | چې هم شمس دی هم قمر
دا څه زلفې دي مشکینې | چې هم مښک دی هم عنبر
دا څه پیوسته ابرو دي | چې هم نیش دی هم نشتر
دا څه سترګې دي قاتلې | چې هم سیف دي هم خنجر
دا څه شونډې دي میګونې | چې هم می دي هم شکر
دا څه سپین سپیڅلي غاښ دي | چې هم دُر دی هم ګوهر
دا څه سیب زنخدان دی | چې هم سیم دی هم ثمر
دا څه قد و څه قامت دی | چې هم ګل دی هم عرعر
دا څه ملا ده باریک وضعه | چې هم موی دی هم کمر
دا څه زړه دی د خوبانو | چې هم موم دی هم حجر
دا څه یار دی نه پوهیږم | چې هم دل دی هم دلبر
دا څه بُت دی زما ربه | چې هم بُت دی هم بشر
دا څه شعر دی رحمانه | چې هم ګنج دی هم هنر

۹

تل به نه وي شګفته ګلزار د عمر | نه به جوړ وي همیشه بازار د عمر
لکه سیند د اباسیند په غورزي درومي | هسې یون دی په تلوار تلوار د عمر
لکه برق چې مخ څرګند کاندي بیا نه وي | هسې تیز دی بې سکون رفتار د عمر
سر کشي لري تر هسې حده پوري | چه نیوی نه شي هیڅوک مهار د عمر
چې سمند یې نه جلب لري نه واګې | خود به پریوزي عاقبت شهسوار د عمر
په ساعت د سلو کالو یاري پرې کا | بې وفا دی هسې رنګه یار د عمر
خپل صورت به د حباب په سترګو ګوري | که څوك وکاندي په زړه کښې شمار د عمر
نه له کوره چیرته ځمه نه سفر کړم | بې سفره مې غوڅیږي لار د عمر
عاقبت به د اجل په مقراض غوڅ شي | پیوسته به مدام نه وي تار د عمر
بیا یې وار په دا دنیا نشته رحمانه | په هر چا باندې چه تیر شي وار د عمر

۱۰

زه تېر شوی یم تر سر | په طلب د خپل دلبر
څو ژوندی یم په دنیا کې | پرې به نه ږدم دغه در
د آشنا په طلب ګرځم | وچې شونډې لېمه تر
یوقدم مې دی په بحر | بل قدم مې دی په بر
دواړه لاس مې دي نیولي | هم په شام هم په سحر
مناجات مې دی وخدای ته | که یې ووینم بشر
همېشه له خپله بخته | ګیله من یم مرور
چې په مایې پیرزو نه کړ | د خوبانو یو نظر
هم یې ونه ښود و ماته | بې له عشقه بل هنر
عاشقي مې خدای رسوا کړه | په جهان کښې لکه نمر
نصیحت راباندې نه کا | لکه موی هومره اثر
واوره غوږ باسه ناصحه | کوتاه وایم مختصر
په مولا مې دې سوګند وي | هم په روح د پیغمبر
جاروانه مې ببرته نشته | چې عالم شه را خبر

تر مینه به یې زار کړم که مې سیم دی که مې زر
که مې سیم دی که مې زر که مې در دی که ګوهر
زه رحمان تر هرڅه تېر یم تیر به نه شم تر دلبر

۱۱

پورته بدر را ښکاره شه ښکته نمر ښکته پورته واړه مخ دی د دلبر
نمر سپوږمی مې په پالنګ د پاسه رغړ ي چې مې یار په بالښت ولګوي سر
په سرو سپینو درو لعلویې غوږ ډک شي چې مې غوږ کاندي د اوښکو په در در
چې دې وړینم په مخ مې اوښکې درومي لکه موم چه په آفتاب شي برابر
بل مذکور د سخنګویو سترګو نه زده بې له دې ذکره چه الله اکبر
ضد دې اور و اوبه بې د یار له شونډو چې هم اور دی هم اوبه دي د کوثر
په شرابو کښې خوند نشته د شکرو د یار شونډې هم شراب دي هم شکر
که سل ځله پېټ تر شونډو لاندي خاندي نه پټېږي آب د لعل و د ګوهر
دا خو ما لره خدای راکړ ګنه نشته هسې بت په بتخانه کښې د آذر
پس له دې به یې په نام د ملَكَ بولم هم په دا چه نشته دا رنګه بشر
که رحمان صاحب نظر باله شي ښایي چه مدام د یار په مخ لري نظر

۱۲

هسې تله کاندي و ګور ته یاران ژرژر لکه تله کاندي خپل کور ته کاروان ژرژر
هسې ژرژر مرګ په مونږه شتابي کا لکه لو د پاخه کښت کا دهقان ژرژر
هسې ژرژر دا دنیا وبله اوړي لکه اوړي و بله ریګ روان ژرژر
هسې زر زر صورتونه دي نړیږي لکه رژي/ریژي لاله زار په خزان ژرژر
هسې ژرژر دا شیرین عمر تیریږي لکه بحر چې بهیږي روان ژرژر
هسې ژرژر ځنبول د بنو نه وي لکه درومي له جهانه رحمان ژرژر

۱۳

چې په زور ور سره نه یې برابر د هغو تر څنګه مه کښینه زړه ور
زورآور اور و اوبه دي فهم وکړه چې ډوب نه شې و یا نه سیځې بشر
زندګي که بې اوبو بې اوره نه شي تل هم نه دي هېڅا ایښې په تېتر
خدای ور مه وله سیلاب د چا په خونه که په قطع هم اوبه وي د کوثر
و دي نه لګیږي اور په کور د هېچا که رڼایې وي د شمس او د قمر
چې یې درست صورت غلبیل شي په اغزیو وخوړ مه شه د هغې ونې ثمر
د هغه دیوال په سیوري څوك کېمنه چې ولاړ وي لکه زوړند چاود کمر
چې په ګیډه دي څوخیږي مخ یې ورك شه که د سرو زرو چاړه وي یا خنجر
ناکرده سودونه ډیر دي په جهان کښې سود هغه دی چه د خیر وي نه د شر
و اوبو ته اچاوه نه شي ځان خوږ دی ګڼه ډیر دي په دریاب کښې در ګوهر
چې له آبه له حرمته سره نه وي خدای ور مه کړه و چا هسې سیم و زر
زور آور که رسوي و چا ته فیض له دې فیضه سره وګڼه ضرر
په یاری د زور آورو غلط مه شه مګر دا چې تر ده ته یې زورآور
په هر وقت چې دی مغلوب وي ته غالب یې ترو هاله یې قدمونه ږده په سر
یا خو دا چې ته قدم یې په درنه ږدې دغه پسه یې ځان وګڼه پدر
چې هنرګښي یاري د زور آوارو بول وکړم زه رحمان په دا هنر

په نظر د بې بصر — لکه شام هسې سحر
لکه شام هسې سحر — لکه سنګ هسې ګوهر
لکه سنګ هسې ګوهر — لکه خاورې هسې زر
لکه خاورې هسې زر — لکه خير هسې شر
په نظر يې معلومېږي — همه واړه برابر
که څوك ښه ورسره کاندي — تر بدييه وي بتر
که څوك بد ورسره کاندي — تر نيکييه وي بهتر
نه په بد ويل زهير وي — نه په ښه وي د چا زبر
په ثواب او په خطا يې — نه دليل وي نه نظر
نه آګاه په خپل بهبود وي — نه آګاه په خپل ضرر
نه په عيب باندې پوهېږي — نه پوهيږي په هنر
لکه ړوند او کوڼ چه ګوري — هسې هېڅ نه وي خبر
له طاعته له ګناهه — څه خبر وي ځناور
ځناورو نورڅه نه زده — يا يې خوب وي يا يې څر
دا خو ته يې زما نفسه — چې دې زه کړم کورو کر
تمام ووتې له عقله — په دنيا پسې اوتر
نه دې فرض د خدای ادا کړه — نه سنت د پيغمبر
نه دې مرګ په زړه ياديږي — نه خواري دې د محشر
اوده پروت يې دا دې نه زده — چې په خوا لرم سفر
په هردم درڅخه درومي — که پوهېږې دا بشر
هغه تور ويښته دې څه شول — چې هم مښک و هم عنبر
هغه قد دې مجنون بيد شه — چې چنار و هم نښتر
تن دې درست زير و زبرشه — زړه دې نه شه لروبر
تر پنجاه و شصته تېر شوې — ته لا ځان بولې پسر
نه دې ترس شي نه دې ويره — نه په زړه باندې اثر
بل به نه وي لکه ته يې — هسې شوخ و ځيګر ور
په غفلت دې عمر تېر کړ — نه رهرو شوې نه رهبر
عبادت دې په ريا شه — لکه ډک په لاکو زر
لکه قلب ناسره مهر — پټ په زرو کښې حجر
لکه پټ وي په دانه کښې — سل اغزيه د شجر
لکه سحرچې بر پای کا — سحر ګر و جادوګر
لکه تش صورت بې روحه — چې تصوير کا مصور
لکه تش کدو بی مغزه — ميان خالي و تن پرور
لکه زړی په مېوه کښې — درون سنګ بيرون ثمر
لکه بې لاسه لستوڼی — سر تر پايه پای تر سر
لکه ټګ و دغا باز وي — په مرغانو کښې د ګر
لکه بې نمکه ناوې — چې په سر کاندي ميزر
تر ميزر لاندې چا څه زده — چې دختروي که مادر
نه يې حسن نه جمال وي — غولوي خلک په زيور

هی له هسې فرېبیانو — لکه زوړند چاود کمر
نیم په زمکه کښې دننه — نیم برسیره لکه غر
په دستار کښې یې مسواک وي — تر بغل لاندې خنجر
په ایرو کښې پټ بڅری — په وښو کښې پټ شرر
په شپه وینې د مظلوم خوري — سبا کښېني په منبر
په زړه تور لکه تبۍ وي — په مخ سپین لکه قمر
د دنیا په طلب ګرزي — خپل ځان بولي قلندر
کلمه په ژبه وایي — په زړه نه لري باور
په مثال د منافقو — نه مسلم وي نه کافر
نه مسلم وي نه کافر وي — نه پخلا نه مرور
پریشان ګرزي سر وهلی — کوی به کوی او در په در
همېشه رفت و آمد کا — د زردارو په ګذر
په کوڅه د دنیا دارو — خورګي کا لکه خر
اورنګ زیب هم یو فقیر و — چې ټوپۍ یې وه په سر
و ټوپۍ وته یې شا کړه — چې قادر شو په افسر
خوی یې همره فقیري وه — چې څه نه وو میسر
چې فلک یې یاري وکړه — نور یې ملک کړ مسخر
ګوره څه چارې یې وکړې — په عیال د خپل پدر
وار په وار تر تیغ یې تیر کړ — د خورم تمام ټبر
یو ټبر د خورم څه و — ډیر عالم یې کړ ډبر
تمامي جهان یې ونغړد — چې سې لاس شه باندې بر
په فریب فریب یې خپل کړ — بیجا پور او بهاګ نګر
بیجاپور بهاګ نګر څه و — لا جنجی او چینجاور
هم یې هند په ډکه واخیست — هم کابل هم پېښور
بیایې ذکر شوه په زړه کښې — بادشاهي د هفت کشور
له حرصه ورته هیڅ شوه — هم دارا هم سکندر
خیال یې دا وه په خاطر کښې — چې به خپل کړم بحر و بر
بارې ورځ ورځني لاړه! — وقت پرې راغی مازیګر
نه یې مراد د زړه پوره شه — نه یې یخ کړه خپل ټټر
همګي شو ځنې پاتې — که یې ملک و که لښکر

خالي لاس له دنيا ووت        لکه عين درويزګر
له دنيا يې هيڅ يو نه وړه        مګر شو يې يو څادر
خوار حيران په ځمکه پريووت        بې بالينه و بې بستر
نه پوزی شه ترې د لاندې        نه ترې لاندې شه ټغر
د بنې په څير خفيف شه        چې ثقيل وه لکه غر
د سيلاب په مخ کښې لاړ شه        لکه خس وي يا وزر
حق يې پاتې په ګردن شه        د سپاهي و د چاکر
اوس يې زه په روح دعا کړم        که يې خدای کا بهره ور
حق تعالی يي په نصيب کا        شيرين حوض د کوثر
د جنت په خوشبويې يې        خدای دماغ کا معطر
په درست هند باندې يې حق وه        هند يوه شپه وه دی يو نمر
د دې نمر په روښنايې        تمام هند و منور
په رڼائې خلقو زيست کړو        نه څه خوف ؤ نه خطر
خو چې مخ يې په غروب کړ        نور پيدا شه شور و شر
چې په نوم د اورنګ زيب و        وخوړ ګاو هغه دفتر
اوس نوبت د شاه عالم دی        دور طور شه دی ګر
خدای زده څه بازي شي پيښه        چې عاشور شي که اختر
رنګارنګه بازي کاندي        دا آسمان دی بازيګر
ګهې تلخ شي لکه زهر        ګاه شيرين لکه شکر
چې څه وشوه هغه وشوه        لابه کيږي مقدر
ما خو نوم د اورنګ واخيست        دا احوال دی د هرهر
هر سړی د خپلي خوني        هم بادشاه دی هم سرور
هرچه اهل د دنيا دي        واړه هسې دي اکثر
دا بيان دور و دراز و        رحمان وکړ مختصر
نه پخلا نه مرور وي        پرېشان ګرزي در په در

که مې غوا وي که مې وزه وي        که مې آس وي که مي خر
که مې مېږ وي که مي مږ وي        که مې اوښ وي که غاتر
که په کورکي مې کالي وي        که لنګۍ وي که ټغر

۱۵

که د عشق لاره اغزنه وي هر ګور        د عاشق په پښوڅپلۍ دي د اور
که ديدن د يار مونده په انتظار شي        زما سترګي دي شبنم غوندې څلور
تيغ د اوسپنو محتاج د نرم آب دی        قرب و حلم يو په سل دي زيات تر زور
له لويې له سر کشۍ زما توبه ده        خدای څوك مه کړه د آسمان په څير نسکور
خدای زده څه سودا به پيښه په بازار شي        د بازار خبرې نه شي په خپل کور
دا همه واړه عاشق لره پيدا دي        که تهمت که ملامت دی که پيغور
جفا جور ناز وجور و کبر د خوبانو        ما په ځان دی قبول کړی لکه پور
راحت بې زحمته نه دی چا موندلی        غم ښادي دي د دې دهر خور و ورور
رحمان هسې په خپل يار پسې غوڅ غوڅ يم        لکه غوڅ په خپل اولاد وي پلار و مور
په يقين به بد کرداره بدکردار کا        کشيده شي د بد کردار سړي پيغور

۱۶

پس له مرگه که ځوك ارت غواړي خپل گور    که حق وايم همره ارت دي بويه کور
تر ځان زياته کمه چار څه پکار نه ده    ځان په لويشت کړه چه دې ځو دي اوږده سور
چې جامه د چا کوتاه شي يا اوږده شي!    ورکاوه شي هنرمند لره پيغور
هر سړی چه په حساب کښې تېر و بېر شي    ملامت پرې وايه کيږي لور په لور
چې لايق د ملامت او د تهمت شي!    ځای لري که بې عزت شي هم سر تور
چې‌عزت حرمت يې نه وي په جهان کښې    هغه هسې ژوندون وسوزه په اور
بې عزت سړی به خوښ د هېچا نه وي    مگر هسې بې عزت وي ځني نور
خپل مجلس يې تر جمله مجلسو خوښ وي    په هر ځای چه سره جمع شي خمسور
هر هم جنس د خپل هم جنسه سره خوښ وي    زيب کا هره کشيده په خپل انځور
نا بينا په خپله سيمه کښې بينا وي    بيناپان په پردي ملك شي کر و کور
که ته نه يې بد کرداره بد لمنه    کښېدې منه بد کردار سړی په غور
درست صورت د يوه نوك په درد درد مند شي    وران شي ښهر د يوه سړي په تور
چې يو غابښ په خوله کښې زوړند شي يا ووزي    درسته خوله پرې بد نمايه شي هرگور
يو سړی چې په کوړمه کې د چا بد شي    واړه گرم کا بد که پنځه وي که شلور
بد کرداره زوی پيدا مه شه له موره    حبطه کاندي ناموس د پلار و مور
هر ځوك خپله خوشحالي له خدايه غواړي    باړې نه شي دغه کار په زر و زور
خدای پخپل قدرت ځوك لوی وځوك هلك کړه    نه چې هر يو ښهر ډيلی شه يا لاهور
د چا تاج زرين په سر تر ملا خنجر وي    د چا پند په سر په ملا تونبلی لور
ځوك په آس د پاسه سور وي توغ د وړاندې    ځوك ږير کلی گرځاوه شي په خره سور
د تنگو پورونه هر ځوك و بله کاندي    بخت هيچا ور کړی نه دی چا له پور
اې رحمانه د خدای نوم به چا وا نه خيست    که د خدای چارې په پلار شوې يا په مور

۱

ستا دې خواب آلودو سترگو خواب را څخه يووړ    شونډو دې لذت د می ناب را څخه يووړ
نه مې‌اوښکې پاتې شوې نه صبر په صورت کښې    ډيرې بې صبرۍ د مخ آب را څخه يووړ
زړه مې په نغمو نغمو سوری کړ مطربانو    عقل ساقيانو په شراب را څخه يووړ
يو ساقي بل يار دريم مطرب سره يوځای شوه    زړه يې له گوگله په شتاب را څخه يووړ
څه شوکه يې يووړ خراب دل مې ترې قربان شه    نور چا وړی نه دی خپل احباب را څخه يووړ
خط دې تور حرفونه مخ دې پاڼې د کتاب دي    شغل د کتاب دې بل کتاب را څخه يووړ
هر اسباب چې ما څخه د زهد د پرهيز و    واړه تا د حسن په اسباب را څخه يووړ
کړی ما رحمان په زړه کښې نقش د محراب و    ستا ابرو يو نقش د محراب را څخه يووړ

۲

خراب زړه مې د دلبرو هوا يووړ    د هوا له وړيو چا زده چه چا يووړ
گوښې گښې ښايسته مې زړه وکاږي    زه و کوم يوه ته وايم چه تا يووړ
چې مې زړه لره د تورو زلفو ځای غوښت    هغه زړه را څخه تورې بلا يووړ
د سيلاب په مخ کښې کله د چا خوب شي    شيرين خواب را څخه ډيرې ژړا يووړ
هغه عقل چه يې لاف د خود رايي کړې    په يوه پياله مينا يې له ما يووړ
هغه رخت چې مې د صبر د سکون و    هېڅ را نه کړه مهوشانو ويريا يووړ
که يې يووړ خسته دل مې ترې قربان شه    نا آشناو وړی نه دی آشنا يووړ
هيڅ نا حق پرې شوی نه دی که حق وايم    معشوقې د رحمان زړه په رضا يووړ

## ز

١

لکه کاندي په کوترو نظر باز　　هسې زه یم د دلبرو نظر باز
زه نور چا وته د راز خبرې نه کړم　　بې هغو چه موی مژگان لري دراز
بل بادشاه لره محال دی ملك د زړونو　　مگر مخ د چا محمود شي خال اياز
ستا د زني تر سيب پورې را ښکاريږي　　نورې زني د خوبانو لكه پياز
د تصوير له گلوطمع د بوی مه کړه　　له منقوشو مرغو نه خيژي آواز
هغه يار که په خپل ناز خوښ و خرم وي　　زه هم خوښ يم هميشه د يار په ناز
هميشه مې لاس نيولي دي دعا کړم　　چې مدام دې د يار ناز وي زما نياز
که څوك آه و فرياد ښه گڼي په عشق كښې　　زه په عشق كې دغه كار گڼم غماز
ښادي هر چيرې د غم په اندازه وي　　هسې غم د دې د ښادی په انداز
نيستي واړه د هستی په دنبال گرځي　　نه ډوبيږي په اوبوكښې تش جهاز
دا قاعده ده لكه لوړ همره ژور وي　　بو صورت دی هم نشيب شي هم فراز
هميشه مې لاس نيولي دی دا خواست کړم　　چې مدام دې د يار ناز وي زما نياز
چې يکسان گوري هم شاه و هم گدا ته　　هسې يار دی د رحمان غريب نواز

٢

که بې ځايه زركي نه وكښي آواز　　نه صياد ځني خبر و نه شهباز
ځکه له دې خبرې هسې معلوميږي　　چې خپل صوت دی هر سړي لره غماز
د منصور و حال ته گوره حال يې څه شو　　خدای دې فاش د هيچا نه کاندي پټ راز
دريغه دريغه كه ورستي عقل ړومبی وی　　د انجام خبرې نه شي په آغاز
نيك عمل د عالمانو نيك فرزند دی　　خدای څوك مه کړه شراب خور و قمار باز
چه فرزند يې شراب خور و قمار باز شي　　نور يې كاني شي د پلار په خونه ساز
خدای له هسې زاه و زاده امان وکړه　　چه بې دين يې ديانت شي بې نماز
چه منکر پرې اعتراض كولی نه شي　　دا دې شعر دی رحمانه كه اعجاز

٣

بد اختر به نيك اختر نه شي هر گز　　مرغچه به در گوهر نه شي هر گز
كه مكان يې په آسمان وي غزا وشوه　　ستاره به شمس و قمر نه شي هر گز
كه يې اصل له يوې زمكي وي څه وشو　　بيد به سرو و صنوبر نه شي هر گز
كه همه عمر باران ور باندې اوري　　خس به گل د پيغمبر نه شي هر گز
له نا اهلو د وفا طمع و مه كړه　　گنده نل به نيشكر نه شي هر گز
كه تورغر له ځايه خوځي و به خوځي　　ولې نور به مقدر نه شي هر گز
د رحمان په باب چه وشوه هغه وشوه　　مكرر به دا دفتر نه شي هر گز

## س

١

ويښته سپين، سترګې تاريکي، غاښ کنډاس
نه وکارېږ د دنيا له چارو لاس

په هر لوري چې يې مومې پسې درومي
نه په چپ لوري صرفه کړې نه په راس

يو ويښته د عقيدې دې په تن نشته
سر تر پايه هسې ډوب يې په وسواس

خداى رازق بولې او رزق ګڼې له کسبه
په دا شناخت و ځان ته وايې حق شناس

هسي رنګ په مذبذب صفت موصوف شوې
چې هېڅ نه پوهېږم ناس يې که خناس

په دويي کښې به ور نه شې ترتوحيده
که پيشوا کړې مهتر خضر مهتر الياس

واړه زهر قاتل نغرې که پوهېږم
چه ته بې له خدايه نغرې هر انفاس

امر دا دى چه له نهې لاس کوتاه کړې
او که نه وي خپلسر وګڼه مواس

خير دې دا دى چې له شره وچار ووزې
په دا چاره کښې هېڅ نشته کوز او پاس

که زما ويل دروغ او کوز و پاس وي
ته پخپله په خپل زړه وکړه قياس

له سره يې غرض واړه سرېټوب دى
نه چې پټ وي د سرو زرو په لباس

څه په دا به عراقي او ترکي نه شي
که په خره باندې څوک سور شي که په آس

د تشنه خو له اوبو سره مطلب وي
نه تش ابينى بې اوبو د زرو طاس

هر زاهد چې په ريا زهد نازېږي
د څربښت ګمان يې کېږي په آماس

دا زما عاجز اميد دى که رب کاندې
په قيامت به مې شفيع شي خير الناس

اى رحمانه که څه کار دى خو د دين دى
نور کارونه بې وفا دي بې اساس

٢

تير شه درست عمر زما په دا هوس
که مې وپوښتي چې څوک يې يا څه کس

يو پرسش د هغه يار ما لره بس دى
که څه کس وي خو يې يوه وينا وي بس

هزار حيف دى چې په هر نفس ترې تښتم
هغه لور ته چې مې تله دي هر نفس

چې يې زه په هر نفس له خدايه غواړم
هغه کله کله وينم په ډېر پس

که يو خس وي په محتاجو لکه غر شي
څوک دې نه کا خداى محتاج د يوه خس

هر مرغه په خپله جاله کښې هماى دى
که قارغه که مېښګيرک دى که ققنس

که شهباز لره سينه ده د تنزري
عنکبوت لره سينه ده د مګس

خو چه خاورو لره ورشي برابر شي
که چا غوندې وي اغوستي چا اطلس

هم هغه مې خندوي چې ژړوي مې
بل څوک نشته د رحمان فرياد رس

٣

که څوک فخر کا په ننګ و په ناموس
دا په عشق کې نه ارزېږي يو فلوس

که اغوستي يې زري جامې دي څه شو
ګڼه يا مرغ زرين دى يا طاوس

که ئې تاج وي په سر ابينى غزا وشوه
په نظر زما هدهد دى يا خروس

نه يې فهم فراست وي نه يې علم
خالي نقش لکه عکس د معکوس

نه يې مغز نه دانه وي په خرمن کښې
عبث هسې په سر لوني خالي بوس

د مجاز له اهله طمع د خير مه کړه
تمامي شر و شدت دى دا الوس

وداني يې همه واړه ويراني ده
راشه وګوره مانۍ د کيکاوس

که زما په ګفتګوى کښې کم و زيات وي
څوک دې ګډ کا په دا ښهر کښې جاسوس

ساقي جام د باده راوړه چې بيخود شم
خداى دې څوک مه کړه په خوديه کښې محبوس

که څوک وغواړي تمامه دنيا واړه
زما يار غوندې به نه وي بل عروس

رحمان حسن د يار وينم په پرده کښې
نه پټېږي نور د شمع په فانوس

## ص ۱

گوره څه بلند مقام دی د اخلاص
چې جهان واړه غلام دی د اخلاص

که له زمکې و آسمان ته خاته گران دي
دا سفر په یوه گام دی د اخلاص

چې خبر کا مخلصان له علم غیبه
دا همه واړه الهام دی د اخلاص

د رواج و رسم عمر مدام نه وي
لکه عمرچې مدام دی د اخلاص

بې اخلاصه حلاوت د اسلام نشته
که اسلام دی خو اسلام دی د اخلاص

څه عجب دی که مستان وي ترې چاپیره
هر ساقي څخه چې جام دی د اخلاص

څه عجب دی که هما یې په دام نښلي
هر صیاد څخه چې دام دی د اخلاص

پس له مرگه به دا مهر و اخلاص نه وي
که اخلاص کړې نن هنگام دی د اخلاص

د رحمان کلام په دا سبب شیرین دی
چې یې هر کلام کلام دی د اخلاص

۲

که تر ستوني دې شي گوټ له جام خاص
هغه دم به شي د غم له شېبو خلاص

تل په سپېنه جامه ټکی بد لیده شي
ته دا عامې چارې مه کړه خاص الخاص

که د وړي نهنگ ځان ته یو لقمه کړي
زر به راوړي په تحقیق سره غواص

په لباس به دې آسان په صورت گران شي
مشکلات به دې اسان شي له اخلاص

که نغمه د محبت په غوږو واورې
په فلک به شي زهره غوندې رقاص

معنوي صورت پیدا کړه که میره یې
فایده څه ده د بتانو له اشخاص

د بل څیز په خاصیت به هغه گوري
چې خبر نه وي د مینې له خواص

چې تارچه ورځني رخت د مینې نه که
فهم دار اوسه رحمانه له رصاص

۳

که گوهر د عشق په لاس راکړي غواص
بیا هاله یې دی له ما سره اخلاص

په کاله به د رقیب غمونه زور شي
که مې یار کاندي حساب له خاص الخاص

په کمند د مستې مینې د خوبانو
بندي مه کړې خدای د حشره پورې خلاص

په رحمان باندې نظر د کرم وکړې
ای چې یې د پاک الله په دربار خاص

۴

ساقي راکړه ته و ماته جام د رقص
زه آرزو په زړه لرم مدام د رقص

ده وې اوس به د خوښۍ ساعت په تاشي
مغني راکړ و ما پیغام د رقص

مسقي علم خپل استاد راته تعلیم کړ
رانمایې کړ هر تار مقام د رقص

سرې پاس تر نهه فلکه څرگندیږي
چې په چا وشي ارشاد اعلام د رقص

چې جلوه پرې د محبوب له لوري کیږي
هرگز نشته په هغه اشام د رقص

څو یې سا په وجود شته عبد الرحمانه
حقیقت به هومبرې نه که تام د رقص

## ض

۱

که ته نه کړې په بل چا باندې غرض | بل به نه کاندي په تا باندې غرض
که ګدا د بل په غولي غرض نه کړي | سپي به نه کړي په ګدا باندې غرض
په ساحل کشتی د هېچا نه ډوبیږ ي | که څوك نه کا په دریا باندې غرض
خلوتیان په خپل خلوت کښې فراغت دي | د رسوا دی په رسوا باندې غرض
دا دنیا په احمقانو ده ودانه | دانا نه کا په دنیا باندې غرض
زه رحمان د عشق په درد کښې هسې خوښ یم | چې مې نشته په دوا باندې غرض

٢

په دربار کوم د ښکلي دلبر عرض | په هردم په هر ساعت مقرر عرض
که قبول شي د مولا په پاک دربار کې | دا په روی د شاه نبي پیغمبر عرض
په مانند د ګړیال په پنځه وخته | په شورش دغه له خوفه د سفر عرض
بې خاونده د کارکله څه کېږي | څه که کار ته همیشه که قلندر عرض
د رحمان بې نبي کله در څښتن ته | شوی کولی د بل کار سراسر عرض

٣

که مېیار په دیدن سر غواړي عوض | ورقربان شه چې دلبر غواړي عوض
چې هسې واړه نیستي کاندي واصل شي | ګند کچکول دی قلندر غواړي عوض
د دوهې په اور به څه حاجت موقوف وي | عاشقي ترې خاکستر غواړي عوض
خپل صورت ورته نافه کړه ته د مشکو | یار مجمر لره عنبر غواړي عوض
د لباس له ښکلیو طمع بوسه مه کړه | د بوسې په درکړه زر غواړي عوض
د دې دهر له ټګیه وېره وکړه | د کهترۍ په ځای بهتر غواړي عوض
د عشق درس څه په اسانه لوسته نه شي | په دا ځای کې زیر و زور غواړي عوض
په یوځله به ترې خلاص نه شې رحمانه | سر و مال دې مقرر غواړي عوض

## ط

١

طمع مه کړه په دنیا کښې د نشاط | بیا به نه مومې نشاط په دا بساط
لکه راغله بیا به هسې ځني درومې | دا جهان دی د رهرویو یو رباط
تر هر ګام لاندې کوهی دی د دې دهر | ایښی بویه هر قدم په احتیاط
و دانا وته په دا جهان ښکارېږي | هم جنت و هم دوزخ و هم صراط
په عاشق به هېڅ دهشت د رقیب نه ؤ | که ئې نه کړی له خوبانو اختلاط
له کم ذاته بې دیانته بې نمازه | طمع مکړه د نیکی د یو قیراط
غم د ترکو تر رحمان هسې چاپېر شه | لکه وسکښې جامه په چا خیاط

٢

نن نګار و ماته راکړ د یارۍ خط | وې یې واخله دا مې دی د دلدارۍ خط
د غماز له دوراهۍ تراهي وکړه | ځای به بایلې د مکار په جوارۍ خط
چېرې نه وې چې یې ځیرې په غفلت کړې | تل یې لوله په تمیز په هوښیارۍ خط
په مدت سره به ستا انجام ته رسي | اسان کله دی دا ستا د رویبارۍ خط
د غفلت له خوبه پاڅه بیداري کړه | تل و تاته سپارلی د بیدارۍ خط
برابر د خط په حکم قدم کېږده | که ته غواړې په عقبی د نامدارۍ خط
له میزانه که امان غواړې رحمانه | تل خو لوله په ډېر عجز په زارۍ خط

## ظ

١

اومه كله دي پاخه وايئ واعظ   هر چې وايي واړه ښه وايي واعظ
دی چې ما له خپله ياره لرې باسي   نور به څه راته اومه وايي واعظ
جاروانه زما له ياره ډېر مشکل دي   زياتي  څه له دوباره وايي واعظ
په خوږو پستو خبرو يې غلط شوې   دا خواږه خواږه ترخه وايي واعظ
څوك به څه باور د ده په نصيحت كا   چې له ياره جار واته وايي واعظ
زه بې عشقه بل يو كار  كولی نه شم   ډېر له عشقه تېښتېده وايي واعظ
اعتبار يې په نرمی په گرمئ مه كړه   دا تاوده تاوده ساړه وايي واعظ
اوريدونكی يې رحمان د ويل نه يم   بهتر دادی چه نور نه وايي واعظ

٢

بلبلان كه له گلزاره مومي حظ   مشتاقان له خپله ياره مومي حظ
زه دعشق له تاوده اوره بهره مند يم   سمندر له سره انگاره مومي حظ
د چمن غوټۍ وا د سحر باد كا   عاشقان خو له ريباره مومي حظ
په طلب يې نفعمند شوم له هرچا نه   تل ښكاري له خپله ښكاره مومي حظ
مجنون بيا مونده خوښي په بيابان كې   هر منصور له تيره داره مومي حظ
څو چې ملک د جهان زير و قدم نه كا   په خپل ځای به څوک قراره مومي حظ
شگفته چې د غونچې غوندې سحر وي   هغه ژنی به بې شماره مومي حظ
په ښندل د سر مې سر د وصل بيا موند   وپاري تل له وپاره مومي حظ
چې نيولی يې خپل ځان د غم و اور ته   رحمان ځكه له انواره مومي حظ

## ع

١

په تندي چه آتش بل كړ مدام شمع   ځكه بيا مونده له خلقو اكرام شمع
په انوار يې منور اهل ابصار شو   لا به كله شي ښكاره د انعام شمع
پتنگان يې لور په لور تر  مخ  څرخيږ ي   ځكه نه كوي  په سول كښې  آرام شمع
وسيزه ته ځان زما  په شعله  باندې   كړه پتنگ ته په رموز كښې كلام شمع
ستا مجلس د خاص الخاصو سر فرازو   د رحمان په څېر نه مومي هر عام شمع

٢

كه دې پرې كړه له وگړيو رښتيا طمع   نور بادشاه يې هرگز مه كړه له چا طمع
زيږی رنگ د آشنايی مبدل شي   پيدا مه شه د اشنا له اشنا طمع
چې له ښكليو د دې دهر وفا غواړي   د نادان په څېر يې شي د كيميا طمع
چې مراد غواړي د زړه له مهرويانو   ستا په دام كې نيوای شي د عنقا طمع
خدای دعقل جواهر ورته بخښلي   له نادانو به څه شان كا دانا طمع
ځكه سپی د فقير پېښې او لمن نيسي   چي د خدای له دره پرې كا گدا طمع
له دغه رنځ يې طاعون تبه بهتر دی   ای رحمانه خدای دې مه كړه پيدا طمع

## غ

هر يو گل د ستا د باغ روښن تر دی تر چراغ   روښن تر دی تر چراغ هر يو گل د ستا د باغ
ستا د باغ و د بې زاغ په نظر زما همای دی   په نظر زما همای دی ستا د باغ و د بې زاغ
د دردمندو په دماغ ستا د در خاوري عنبر دي   ستا د در خاورې عنبر دي د دردمندو په دماغ
د عاشق د تېر داغ په آسمان د عشق آفتاب دی   په آسمان د عشق آفتاب دی د عاشق د تېر داغ
د رحمان د زړه فراغ نه شي نه شي بې خوبانو   نه شي نه شي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ

**ف**

اورنگ زیب و شاه جهان غونديږ اشراف
صدقه شه تر منصور غونديږ نداف

که دي تن په لويي لوی دی ته يې څه کړې
مه کړه خدای چې کوه طور شي کوه قاف

بوالهوس ديږ عاشقۍ ته هوس نه کا
دا دروغ ديږ چه زر دوز شي بوريا باف

د مکې په بزرکی کښې هېڅ شك نشته
ولې خر به حاجي نه شي په طواف

که په سل دريا به غسل د ځان وکا
گمان مه کړه چه به سپی شي پاك و صاف

ببړی هم چې ډېره ډکه شي ډوبېږي
د مسرف په ځان بلا شه خپل اسراف

صابرانو صبر پرېښود حريصان شول
نه څه عدل شته په چا کې نه انصاف

دا څلور واړه مذهبه سره يو دي
ما و تا په کښې پيدا کړه اختلاف

د همه واړه ملکونو ځښتن يو دی
که دوزخ دی که جنت دی که اعراف

شهيدان نه دي هغه خون فروشان دي
چې خوني ته خون بها نه کا معاف

د كاذب ژبه په خوله کښې وچه ښه ده
لکه توره د لرگيو په غلاف

د ديوال په سر به څو زغلي تر کومه
دروغژن چې د دروغو کاندي لاف

آب و تاب د ناکره مهر وي څومره
څو نظر پرې شوی نه وي د صراف

د دنيا په دولت ناز مه کړه رحمانه
دا يو موی دی په نظر د مو شگاف

مدح و هجوه د حبيب و د رقيب کړم
رحمان نه زده بله هجوه بله لاف

**ق**

١

چې پای بند شه د ليلی په اشتياق
مجنون واچاوه و نورو ته طلاق

چې د مى ود مطرب په خوند خبر شه
فراموش کړه صوفي نفل د اشراق

جام د ميو دی يا رقص د خوبانو
په هر ځای چه وبله جمع شي عشاق

په نسيه و نظر نه کاندي بى نقده
که څوك حورې ورته ستايي که براق

چې حاصله د دلبر يگانگي شي
د دويی خبرې نه کاندي مشتاق

حرکت له ځايه نه کا لکه شمع
که يې اور د عشق بلير ي په تاراق

خوښ وي هسې د خپل يار په درد وغم کښې
ته به وايي چه بادشاه دی د آفاق

هسې محوه وي د عشق په مي ناب کي
چه خبر نه وي په وصل په فراق

که ظاهر په صورت وي په معنا نه وي
لکه کښلی د لا لفظ وي په اوراق

څو يې تن په کار و زارکې فنا نه شي
نه جار باسي مخ آسونه د عراق

د عراق آسونه کار په اشارت کا
په وهل په کوتل کارکوي الاق

چې خدای پوه کړل د ښو په ځنبل پوه شو
چي پوه نه شو نه پوهيږي په شلاق

که يي سر ځي که يې مال ځي خدای ديږ نه کا
د طالب و مطلوب تر مينځ نفاق

د قسمت پارچې په لاس نيولی ناست يم
نه پوهيږم چې به جفت شي که به طاق

ته چې پند وايي ناصحه و رحمان ته
کاشکي نور کړې هغه کښلي د ميثاق

رحمان خوښ دی د خپل يار په درد وغم کې ته به وايي چې بادشاه دی د افاق

٢

خدایه څه شوه هغه ښکلي ښکلي خلق — په ظاهر په باطن سپین سپیڅلي خلق
هیڅ خندا مي له دې خلقو سره نه شي — ژړوي مي هغه تللي تللي خلق
خبر نه یم چې و کومه خوا ته لاړ شه — لیدی نه شي هغه ما لیدلي خلق
لکه څک چې د اوبو په مخ کښي دروميي — هسي درومي په دنیا راغلي خلق
دریغه یو ځله خو بیا په جهان راغلی — له جهانه په ارمان وتلي خلق
هزار حیف دی چې په خاورو کښي لاړه شي — په چووا اوپه چندڼ لړلي خلق
رحمان هسې ګوښه خوند له خلقو بیا موند — چې هرګز نه دی دا خوند موندلي خلق

**ك**

١

چې په زړه مي تور لحد شي د خپل خاك — بې مزه مي شي هم خوب هم مي خوراك
چې د خوب او د خوراك مزه شي ورکه — نور له مرګه برابر شي هغه ژواك
غلط وایي چې څوك عمر ورته وایي — هغه عمر چه تیریږي په پخساك
نن سپیره په خاورو ډکه خوله بهتر یم — چې آخر مي دا خوراك دی دا پوشاك
ځای لري که ځان ژوندی په زمکه ښخ کړم — چې مي پس له مرګه ځای دی یو مغاك
ګویا شوي دي هغه چې شدني دي — زه پخوا تر هلاکته یم هلاك
زړه چې روغ وي ګریوان کله څیره اوه شي — له ګریوانه معلومیږي د زړه چاک
تن و ځای و جامه هله پاك پکار دي — چې ړومبی شي د چا زړه له غیره پاك
سړی بویه چې درون بیرون یي یو وي — نه هغه چې بیرون زر وي درون لاك
له سړیه غرض واړه سړیتوب دی — نه چې سر کښي یې طره وي یا مسواك
د دنیا چارې همه واړه فاني دي — څوك یو دوه ورځې خوشحال وي څوك غمناك
په ساعت کښي څوك خوشحال کا څوك غمناك کا — دا خویونه همېشه دي د افلاك
چې څه کاندي واړه خدای دی نور څه نشته — رحمان څه دی څه یې واك څه یې ادراك

بې ښه خویه مخ روڼی له هېچا نه شي — که هرڅو یې پاکیزه کا په رویمال څوک

٢

ماتوي مي خوله په سوك — خراشي مي زړه په نوك
که ناري و هم که ژاړم — پروا نه لري یو څوك
راشئ ګورئ منصفانو — د دلبرو دا سلوك
لکه ګل په لاس د طفل — زما زړه کړي شوك په شوك
د چشمانو په غمزه یې — ژوبل ژوبل یم ټوك ټوك
د فلك په توسن سور شي — دستار کیږدي په سر هوك
هیڅ اثر ور باندې نه کا — د دردمندو درد و دوك
اې رحمانه چې عاشق شي — ځان دي ژاړي کوك په کوك

٣

زړه مي تراشي د ښو په تیره نوک — ماتوي مي دودیرش غاښ واړه په سوک
په غمزو د تورو سترګو یم وژلی — ژوبل ژوبل پروکی پروکی یم ټوک ټوک
که ناري وهم که خاورې په سر لونم — ناروا شه که پروا لري یو چوك
لکه ګل چې څوک د طفل په لاس ورکا — هسې رنګ دې زما زړه کړو شوک په شوک
که له ډېره درد و غمه مي زړه وچوي — ورته هېڅ دې زما درد و زما دوک

درست جهان یې په غم ډوب کړ سرترپایه — که گدا دی د دې دهر که ملوک
د آسمان په نیلي سور لکه آفتاب شي — د زربفتو دستار کیږدي په سر هوک
که انصاف لرئ په زړه کښې منصفانو — راشئ گورئ د دلبرو دا سلوک
زه به ولې د خپل یار ثنا نه وایم — چې سحر سحر نار وهي تل غوک
چې مین د دلبرانو په جمال شي — ای رحمانه ځان وژاړه کوک په کوک

۳

چې علاج کولی نه شي د قسمت څوك — ترو به څه وایې و چا ته نصیحت څوك
هغه چارې چې موقوفي په تقدیر دي — کړه یې نه شي په محنت په مشقت څوك
که نظر کا و قضا و هم رضا ته — په هیڅا باندط دې نه کا ملامت څوك
د مطلوب جفا وفا واړه هنر دی — څه پوهیږي د حکماو په حکمت څوك
غم په ځان د چا پطرزو دی بارې څه کا — چه د خدای په کړه/کړو کښې نه لري قدرت څوك
د ابلیس و ریاضت ته دي نظر کا — څه غرور کا په طاعت په ریاضت څوك
علت لاړ شي عادت نه ځي له سړي نه — خدای دې نه کاندي په بده چارعادت څوک
زه رحمان د بېلتانه سیلاب یم وړی — که لاس را کاندي د خدای په محبت څوك

۴

په ښایست زما دیار نه دي خبر څوك — که خبر شي پرې به نه ږدي دغه در څوك
د دنیا چارې همه واړه فاني دي — بر ناحقه خاوري لوني په خپل سر څوك
چه قبول شي په درگاه د مهرویانو — د هغه په څېر به نه وي بختور څوك
که زما د یار په مخ د چا نظر شي — و به نه کاندي بل مخ وته نظر څوك
که هرڅو دلبراندېر دي په جهان کې — بل به نه وي زما یار غوندې دلبر څوک
د دیدن طاقت یې هیڅا څخه نشته — و آفتاب ته کتی نه شي برابر څوك
عاشقي یوه پایه ده عجایبه — دغه کار کولی نه شي هم هر هر څوك
له هجرانه بله سخته بلا نشته — خدای دې نه کاندي زخمي په دا نشتر څوك
مخ به بل خوا ته هرگز و نه جار باسي — چه شي ستا په خمارو سترگو ابتر څوك
و به نه رسیږي تا ته په آسانه — ستا په غم چې خاوري نه کاندې په سر څوك
ارمانونه به کوي زار زار به ژاړي — چې حاصله گونټه نه کا په شش در څوك
همره نوم د عاشقی ور باندې مه ږده — چې د یار په غم کښې نه شي قلندر څوك
هغه نه کاندي نظر و سیم و زر ته — چې په لور د خپل آشنا کاندي نظر څوك
په گلونو د گلزار به میل نه کاندي — چې خوبونه کا د یار په خاکستر څوك
بې رهبره یون د عشق په لارې گران دی — دلته بویه چه پیدا کاندي رهبر څوك
چې بیلتون په سترگو ویني آشنایي کا — د رحمان په څیر به نه وي بې هنر څوك

۵

چي مشغول نه وي د ترکو په جمال څوك
له نور چا سره به څه کا قيل و قال څوك

چي يي قيل و قال له ياره سره نه وي
چي نظر وکاندي ستا په خط و خال څوك

د بل خط په عبارت به نظر نه کا
ترو به څه غواړي دا ستاد مخ مثال څوك

چه په اصل کښي خداى نه دى پيدا کړى
لکه بل کا د آفتاب په مخ مشال څوك

نور خوبان د ستا تر مخ پوري دي هسي
ترو به څه ووايي چا وته احوال څوك

چي عنقا شو اهل دل په دا دنيا کښي
په دا هسي درد کښي نه لري مجال څوك

که عاشق په عشق کښي ژاړي هيڅ شي
له نور چا سره به نه کا قيل و قال څوک

چي په اصل کي خداى نه دى پيدا کړى
تروبه څه غواړي د ستا د مخ مشال څوک

سر خرويي دهرسړي په جګر خون ده
نه هغه چي په سر واچوي سور شال څوك

مخ رونى دى د عاشق په خپلو اوښکو
په دانه شي چي يي مړي په رويمال څوك

سړى بويه چي په نيك عمل نازيږي
نه چي ناز کا د دنيا په ملك و مال څوك

د دنيا چارې فاني دي مرد هغه دى
چه نظر کا په حرام و په حلال څوك

هر چي کر کا د اوربوشو غنم غواړي
له خاطره دې بيرون کا دغه خيال څوك

سړى بويه چي په نيک عمل نازيږي
نه چي ناز کا د دنيا په ملک و مال څوک

که يي شعر د رحمان مهمند تر غوږ شي
غوږ به نه باسي په شعر د خوشحال څوك

زه لارغه د ستا په مينه کي شهره يم نه چي نن کاندي خبرې پردي خپل څوک
ما دا يو سر دى دا ستا شکرانه کړى که د سره ماغزه مي خوري په دا ويل څوک

۶

که په بخت کم بختان نه واى خسته دل څوک
په حضور به له تا ولي بېلېدل څوک

و ديدن و ته دي د هرچا رضا کيږي
ولي حکم بي له تا نه لري بل څوک

که يي لاس د خداى په چارو رسيدلاى
بي مقصوده به يو دم نه سهېدل څوک

دا يو سر دى ما دا ستا شکرانه کړى
بر ناحق مي ويروي په سر وهل څوک

دا همه شوميت زما دى چي رارسي
ګنه ته او د چا زړونه بدول څوک

د ديدن په طمع وغولېدم بندي شوم
ګنه زه او د هجران سختي زغمل څوک

په هيڅ رنګ به دي له ميني منکر نه شم
هرشان قصد چي مي کوي په قتلول څوک

که مي زړه ستا د ميني نه واى راپيرودى
په رضا له سره کله تېرېدل څوک

که اثر د محبت ورسره نه وي
روغ صورت دا هومره زړه زهيرېدل څوک

که په مينه دليلي مبتلا نه واى
خوار مجنون په دې بيديا غرونه ځنګل څوک

مينه هره بلا کاندي که باور کړې
ګنه زه عبد الرحمان هومره ويل څوک

ګ

١

زغره واغونده ملا وتړه په جنګ
دغه پسه معرکه کوه د ننګ
و بې ننګ وته د ننګ خبرې مه کړه
یا ځان وګڼه په خپلو وینو رنګ
ننګیالي چې یو ځل مخ کا په یو لوري
نور هېڅ نه ویني کوهی وي که ګړنګ
هېڅ له ځانه له جهانه خبر نه وي
چېڅراغ په نظر کیوزي د پتنګ
د بلبلو و چمن وته پرواز وي
سمندر کا مدام اور وته آهنګ
که جهان و بې هنرو ته فراخ وي
یو لحد دی هنرمندو لره تنګ
هغه ښهر جوهري لره زندان وي
چې یکسان وي په کښې لعل و مردار سنګ
آسمان زمکه دواړه ژامې د نهنګ دي
څه به زیست کا څوك په خوله کښې د نهنګ
په ښادۍ یې هېڅ ښاد مه شه که دانا یې
غم ښادي دي د دې دهر څنګ په څنګ
که رحمان د هغو تللیو وصال مومي
تېر به نه کا په دا دور کښې یو د رنګ

ل

خراب دل مې بهي غواړي بلا دا شوه چې بهي را معلومېږي کال په کال

١

اینې مې پر سر دی ستا د مخ د مینې ګل
بیا مې تور لېمه دي ستا د زلفو تور سنبل
ته چې آیینه په لاس کښې واخلې حیرانېږي
زه له کومه راوړم صبوري او تحمل
ګرځې په چمن کښې منګول ډکه وړې د ګلو
خدای زده چې ګلونه وړې که زړونه په منګول
هم مې مښک لیدلي هم عنبر دي په جهان
شاباش شاباش شاباش ستا د زلفو په کاکل
نه به ستا د مخ په څېر ګلشن وي چا لیدلی
نه به وي زما په څېر آهونه د بلبل
هسې تغافل کا ستا په جور و په جفا کښې!
خلق حېیرانېږي د رحمان په تغافل

٢

هېڅ مې نه کړه په دا عمرکښې حاصل
هسې پاتې شوم مردود و نا قابل
ما لا بوی هم د وصال موندلی نه دی
تش په توره مې خدای نوم کړ د واصل
هسې ډوب یم د ګناه په دریابونو
چې په سترګو مې ونه لیده ساحل
له وطنه مې په هر زمان وباسي
رقیبان یې را پسې کړه محاصل
که بلا ده که جفا ده که وفا ده
دا همه واړه په ما کړه خدای نازل
د دنیا په پلیتی مې ځان پلیت کړ
حیف دی دا چې نه عالم شوم نه عامل
توره رېره مې شوه سپینه زه حیران یم
چې رحمان لا نه بالغ شوم نه عاقل

٣

مه غوږ باسه د نا اهلو قيل و قال
پکار نه دی قيل و قال د بد سگال

يا به فخر په خپل اهل و په نسب کا
يا به فخر کا په آل و په عيال

يا به ذکر د لذت او د زينت کا
يا به فکر کا د مال او د منال

يا به هسې پوچ گويې کاندي آغازه
چې مضمون يې نه مردار وي نه حلال

د دانا او د نادان صحبت دی هسې
لکه گډ شي وبله لعل و کوتې لال

لکه لعل او کوتې لال چې وبله گډ شي
يا صحبت شي د عيسې او د دجال

هغه عمر چې تېرېږي بې هم جنسه
ترو به څه وي د هغه عمر احوال

د دنيا چارې فاني دي مرد هغه دی
چې خبر شي په ثواب او په وبال

ابا سيند لا څه محال لري په تله کښې
د دنيا د چارو هېڅ نه وي مجال

د دنيا چارې په مثل خواب و خيال دی
څوك به څه کا اعتماد په خواب و خيال

لکه مال و ملك په خوب کښې ور څرگند شي
خو چې ويښ شي نه يې ملك وي نه يې مال

لکه ځک چې د اوبو په سر ليده شي
که يې واخلې هېڅ ور نه شي په چنگال

لکه دود چې غرونه غرونه څرگندېږي
تار په تار شي په يوه نري شمال

لکه يخ چه د سړو په زور شي جمع
هېڅ يې نه وي د آفتاب په مخ مجال

يو ساعت باران بيا شين آسمان شي
لکه ابر د پسرلي د پشه کال

په يوه ساعت يې ساز بيا يې ويران کا
خاورې ختې دې په لاس کښې د کلال

د مجاز په معشوقو کښې وفا نشته
ما هزار ځله وکښلی دی دا فال

اعتماد يې په ښادئ و په غم مه کړه
نه يې هجر په قرار دی نه وصال

گاهې تور کودی په مخ باندې را کيښ شي
گاهې را کيښ شي په مخ باندې رومال

لکه مالگه چې څوك کېږدي په اوبو کښې
زه هم هسې سر زده يم په مثال

چې د مرگ و تاخت و باخت وته نظر کړم
صورت وينم د مېږ ي په څېر پا مال

خراب دل مې بهې غواړي بلا دا شوه
چې کهې را معلومېږي په هر کال

که وصال مې د يار بيا موند هاله سيال يم
گنه نه يم زه رحمان د هېچا سيال

۴

بېلتانه دې هسې خوار کړ زما دل
چې تمام ئې لاله زار کړ زما دل

لاس وپېښې د خلقو نيسي دعا غواړي
په بلا دې گرفتار کړو زما دل

منت بار کړو زما دل ستا مينې هسې
چې له غيره يې ويزار کړو زما دل

تا په څه سبب آزار کړو زما دل
چې مين يې په دلدار کړو زما دل

۵

چې له نازه پوښیده لري چشمان خپل — څه به وینې مقتولان و مظلومان خپل
چې ښکنځل راته په قهر قهر کاندي — دا لا وګڼي په ما باندې احسان خپل
ګفتګو په اشارت کاندي له نازه — کله اسم د چا اخلي په زبان خپل
په ګریبان باندي چې ټک وهي غوټۍ! — عاشق ښیباسي لاسونه په ګریوان خپل
خریدار یې له حیرته بې شعور شي — چې د حسن رخت څرګند کا په دکان خپل
چې خپل مخ په آئینه ښې ور څرګند شي — خود پخپله سرفرو کاندې په ځان خپل
چې هر څوك یې عاشقۍ وته هوس کا — ګویا لوبې کا په دین و په ایمان خپل
هېڅ صرفه د چا په سر و په مال نه کا — ما لیدلي دي پخپله مطلوبان خپل
مجنون ملك د عاشقۍ هاله خپل کړو — چې په اور باندې یې وسوه خان و مان خپل
دا مقام دی د هغو رنګه عالمو — چې هېڅ نه ویني په سترګو سود او زیان خپل
آفرین د عاشقانو په همت شه — چې ور تیر تر سر او مال ویني جانان خپل
هیڅ د سترګو غړولو خوند ئې نه وي — چې رحمان په سترګو نه ویني جانان خپل

۶

تور لیمه مي د فراق په ژړا سپین شول — دوباره د زړه په وینو کې رنګین شول
ما وې زه به لا دیدن کړم د یارانو — خبر نه یم چې یاران په کوچ تعیین شول
چا پتنګ غوندې ځان واچول و اور ته — څوک ژوندی لکه بلبل په آتشین شول
و مرده وته د مرګ خوارۍ شوې پیښې — او ژوندي په زندګۍ کې اندوهګین شول
د قضا سپاهیانو هسې لاس په تاخت کړ — چې پایمال هزار خسرو هزار شیرین شول
چې قدم یې په آسمان ایښود له نازه — هغه هسې ناز پرور زیر زمین شول
چې مدام یې په سنجاب د پاسه خوب کړ — اوس په ځمکه بې بستره بې بالین شول
د رحمان خاطر به ولې پریشان نه وي — چې پریشان ورڅخه جمع همنشین شول

## م

۱

په لېمه ښې مې مدام — ګرځي عکس د ګلفام
تور د سترګو مې ګلګون شوه — په آرزو د ګل اندام
بې د سترګو له خونابه — نه باده لرم نه جام
په طلب د دلارام ښې — ما و نه لیده آرام
زنخدان یې خدای کوهی کړو — ورښوېږم په هر ګام
که یې خال د مخ غلام دی — زه غلام یم د غلام
که په عشق ښې ناکام ډېر دی — دا ناکام دی زما کام
خوښ یم زه په عاشقۍ ښې — که نیك نام یم که بد نام
په یارۍ ښې مې قبول دی — ملامت د خاص و عام
د دعا په عوض غواړم — د خپل یار د خولې دشنام
تر ښکنځلو به یې ځار کړم — دغه خپل دعا سلام
تلخ ګفتار یې راته خوږ دی — تر کشمش و تر بادام
هم هغه مې مسیحا دی — چه یې را کاندي پیغام
مخ د یار ماه تمام دی — رحمان ولیده تمام

۲

که مې ونمائې ساقي په يوه جام    تر دا هور ته به نور څه وي احترام

بس/بنه دی ما لره دا فيض د شرابو    چې پرې ووينځم دا دلق ازرق فام

مې خواري که په عالم کښې بدنامي ده    ما تر پښو دی لاندې کړی ننګ و نام

په ميزان يو سر لعل وي بل سر کاڼي    مساوي ده عاشقي په خاص و عام

عاشقان د سپين رخسار د تورو زلفو    څه پروا لري د کفر د اسلام

په مجنون باندې قلم راغلی نه دی    که حلال يې په مخ ورشي که حرام

حلال عشق دی په رحمان باندې راغلی    په حلالو کښې مدام وي احترام

۳

و محمود وته نظر کوه مدام    چې غلام کړ خپلې مينې د غلام

د نيکانو مدعا خو نيك عمل وي    ساعت نه ګوري که صبح وي که شام

چې د زړه حضور يې نه وي په لمانځه کښې    پکار نه دی مقتدي وي که امام

چې مجنون غوندې په مينه کښې صادق وي    رحمان وايم په هغه باندې سلام

هم نغمې کاندې هم رقص کا هم خاندې    د رحمان په شعر ترکې د باګرام

۴

د هجران له ډيره غمه ولې نه مرم    له دې هسې رنګ ماتمه ولې نه مرم

چې يو يار له بله ياره جدا کيږي    د دې دهر له ستمه ولې نه مرم

چې هرهر سحر زما په ژړا خاندي    له دې هسې صبحدمه ولې نه مرم

يار چې يار په سترګو نه ويني خو مرګ دی    ترو زه بې خپل صنمه ولې نه مرم

چې په لړه ګرمئ شا کاندې و ګل ته    له دې بې وفا شبنمه ولې نه مرم

چې د مرګ خوارئ په خوا لرې رحمانه    لا پخوا تر دغه دمه ولې نه مرم

۵

که په سر د هغه يار له لاسه سنګ خورم    خدای دې نه کا چې به بله خوا ته څنګ خورم

عاشقي او ننګ و نام دې وبله لرې    څو به عمر واړه غم د نام و ننګ خورم

خدای و ما وته شيرين کړه تر شکرو    که د يار له لاسه غشي د خدنګ خورم

د آشنا د بېلتانه په کار و بار کښې    هميشه په تندې توره د فرنګ خورم

نوکري د معشوقو کوم په عشق کښې    مهيني نه د بهلول نه د اورنګ خورم

شين لوګی مې په سر چتر دونهه تخت دی    ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم

هم په دا چې له خودئ شمه بې خوده    د هجران په غم کښط لپې لپې بنګ خورم

لکه څوك چې نعمتونه د دنيا خوري    زه د يار دجفا زهر په دا رنګ خورم

واړه زهر شي زما تر ستوني درومي    بې له ياره که همه لاچي لونګ خورم

زه رحمان به څو ژوندی په دنيا پايم    چې په بلو لمبو څرخ لکه پتنګ خورم

۶

سر مې په کار نه دی چې يې ستاترسر قربان کړم    زر راځخه نشته چې يې ستا په پښو ډېران کړم

کار د عاشقئ اول ډېر راته آسان و    اوس هسې حيران يم چې دا کار به په څه شان کړم

ډېرو خلقو لافې ستا د مينې دي وهلې    هيڅوک هسې مه شه لکه زه چې يې په ځان کړم

نه لري مرهم د عاشق زخم بې تسليمه    دا څه هسې درد نه دی چې يې دفع په درمان کړم

نه کا هېڅ دښمن په دښمنانو هسې چارې    ستا په عاشقی کی لکه زه چې يې حيران کړم

ولې کافر نه وي مسلمان به شي که خدای کا    هرچاته حسن ولطافت د ستا بيان کړم

وړاندې وي که ورستو آخر هسې معلومږي    ستا له بېرحمی به زه رحمان لاس په ګرېوان کړم

٧

زه دا هسې دیوانه او مجنون چا کړم
له رواجه له رسومه بیرون چا کړم

نه پوهېږم چې دا چارې په ما څوك كا
لیونی د خپل نګاه په افسون چا کړم

کومې سترګې کوم با نه کومه غمزه ده
ډوب شهید غوندې په خاك و په خون چا کړم

توان توفيق خو د فتنو را څخه نه و
په فتنو د تورو سترګو مفتون چا کړم

رحمان هېڅ له خپله ځانه خبر نه یم
چې دا هسې رنګ زبون و محزون چا کړم

٨

صبح و شام مې لاس نیولي دي دعا کړم
خواست له خدایه ستا د مهر و د وفا کړم

هېڅ دروغ ربښتیا مې نه زده که باور کړې
ستا دپاره هم دروغ و هم ر ښتیا کړم

واړه ته یې خندول که ژړول کړې
زه پخپله نه خندا کړم نه ژړا کړم

که ته نه یې باري وایه راته څوك دي
زه دا هسې لیونی ومجنون چا کړم

خوب خندا دبېلتانه په زمکه نشته
څه آرام به په دا دشت کربلا کړم

هره ورځ چې مې تیریږي ستا په غم کښې
زه په هره ورځ پوهېږم چې غزا کړم

یو ویښته مې د صورت کوږ شوی نه دی
هسې رنګ دې پټ پنهم په زړه ادا کړم

زړه که یو وي ما خو تا لره درکړی
مګر نورو لره نور زړونه پیدا کړم

چې مې واغوست سر و پای د عاشقۍ
زه رحمان دې سروپای بې سروپا کړم

٩

دا ستا درد به په هزار درمان ور نه کړم
دانسته به دغه سود په زیان ور نه کړم

که څوك را کاندي دنیا او عقبا دواړه
عاشقي به دې په این و آن ور نه کړم

څو مط تیغ په پهلو نه دی لګېدلی
ستا پهلو به و رقیب آسان ور نه کړم

که یو ځله مې ستا زلفې په لاس کښېوزي
یو ویښته به دې په درست جهان ور نه کړم

که مې چېرې لاس د ستا په بوسه بر شو
دا نعمت به د جنت په خوان ور نه کړم

څو ونه وینم ستا سترګې که یې خدای کا
عزرائیل لره به هومره ځان ور نه کړم

معشوقي د عاشقانو دین ایمان دی
زه به چا لره خپل دین ایمان ور نه کړم

ستا تر زلفو پورې نورې زلفې څه دي
په خاشاك به د چمن ریحان ور نه کړم

په رحمان دا ستا د لبو می حرام دی
څو د خپلو وینو جام تاوان ور نه کړم

١٠

دا یو څه رنګه ژوندون دی نه پوهېږم
ترو زلال که جګر خون دی نه پوهېږم

جام د میو چې د ځان په وینو مومم
مخ دې اور دی که ګلګون دی نه پوهېږم

د پتنګ او د بلبل تر میان حیران یم
که غوغ شوی مې نارون دی نه پوهېږم

په شانه سره دی تار د زلفو بیل شه
چې وصال دی که بیلتون دی نه پوهېږم

عشق په هسې رنګ مقام باندې قائم کړم
چې موسی دی که قارون دی نه پوهېږم

د خپل زړه و علامت وته حیران یم
خدای زده عشق دی که طاعون دی نه پوهېږم

د رحمان خیره یې زېړه تر زعفران کړه خواب
و خیال دی که افسون دی نه پوهېږم

١١

بيا دې نوي شراب ځښلي دي پوهېږم | په رخسار دي ګل كرلي دي پوهېږم
كه هزار ځله لاس سره كړې په نكريزو | تا زما په وينو وللي دي پوهېږم
معركه زما د مرګ نه ده نو څه ده | رقيبان چې تا بللي دي پوهېږم
څه حاجت دى چې دې خط په ملا لولم | چې زما په باب دې كښلي دي پوهېږم
ته خپل جور و جفا څه وايې و ما ته | ما همه واړه ليدلي دي پوهېږم
چې رقيب او تا غوږونه و بله وروړه | ما هغه ساعت ژړلي دي پوهېږم
رقيبان ځكه تيرى په رحمان كاندي | تا په خوا پورې نيولي دي پوهېږم

۱۲

چې له مرګه بې پروا يې په هر دم | دغه هسې غم دې هېر دى په كوم غم
نور همه واړه غمونه به دې هېر شي | كه يو ځل در باندې راشي دا ماتم
چې زخمي يې سبا نه مومې په بيعه | مفت مونده شي نن ساعت هغه مرهم
د مرهمو تياري ور لره بويه | چې لا نه يې د اجل په تيغ كړم
چې د تن له سرايه درومې توښه واخله | تر دا سراى په هورته سراى نشته محكم
د دې لارې تله څه هسې آسان نه دي | مشكلات دې په هر دم په هر قدم
كه دې وېره شي له ظلمه له ستمه | ته هم مه كړه په هېچا باندې ستم
كه اميد لرې له رحمه له كرمه | ستا هم بويه په هر چا باندې كرم
له هر چا سره چې كړې هغه به مومې | د هېڅ تخم ميوه نه درومي برهم
اجر واړه د عمل په اندازه وي | دغه دواړه سره يو دي هم درهم
اوس د ستا رضا نيكي كړې كه بدي كړې | نيك و بد دي دواړه كښوى شي په قلم
خداى د رزق په زيرمه مه هيروه كلك شه | تر سړي د سړي رزق دى مقدم
كه ګڼې چې په حرص سره څه زيات شي | زيات به نه شي د يوې ستنې تر سپم
كه هزار رنګه تالاش و تردد كړې | د قسمت شوي به نه كړې زيات و كم
ډېر هوا و حرص مه كوه خداى ياد كړه | دى كافي دى د عرب و د عجم
په تا فرض عبادت د خپل ښتن دى | نه لښكرې خزانې نې ملک و حشم
ټوك ډوډۍ يوه شړۍ درلره بس ده | نور همه واړه اسراف دى مسلم
له خوراكه غرض قوت او لا يموت دى | نه چې غوښې غوړي وريجې يا غنم
له پوشاكه غرض خپلسر پټول دي | نه اطلس و سقلات تاج و علم
كه حرص در باندې زور شي مرګ را ياد كړه | دا علاج دى دغه رنځ لره محكم
د لحد د تاريكۍ علاج به څه كړې | چې ته دلته كښيوېرېږي په تورتم
غفلت هېڅ مناسب نه دى د سپين ږيريو | خوب روا نه دى په وقت د صبحدم
مار چې سوړې لره ورشي ګوره سم شي | ته د ګور په غاړه راغلې نه شوې سم
خم قامت د دنيا كار كړې عمر واړه | او په دوه ركعته نفلو نه شوې خم
ځان پخوا تر هغه وژاړه كه مرد يې | چې په تا باندې ژړا كا نور عالم
نور عالم چې په تا ژاړي انصاف وكړه | بې انصافه ته په څه يې خوښ خورم
كه زه نه وايم ته خود ستركې رونې كړه | كور دې خور شه ته چارپاى يې كه آدم
اې رحمانه لكه ته چې په خداى ګرم يې | بل به نه وي په جهان كښې هسې ګرم

پس له مرګه به دې هورې هم خانه وي | څه پوهېږي يا به مار وي يا لړم

۱۳

ځو به صبر په جفا د يار کومه ځو به موم د نمر و مخ ته ګرځومه
عاشقي او صبوري سره دروغ دي زه دا لا په دروغ څه رنګ وهمه
ته و ما ته نصيحت مه کړه ناصحه زه دا لافي خپل تخم خپل ځان لره کرمه
ما خو زده چې مينه اور ده خداى مين کړم دانسته خپلسر و اورته اچومه
سررشته مي خداى د يار په لاس کښې ورکړه په هر لور چې مې را کاږي پسې ځمه
د آشنا د مينې لاس زما ګريوان دى زه په دا کار کې هېڅ عذر نلرمه
عاشقانو باندې حق د معشوقو دى حق به ولې په باطله بدلومه
ما چې مينه د يار فرض په خپل ځان کړه ترو له فرضو غاړه څه رنګ غړومه
دا څه ژوند دى چې يار نه وينم په سترګو زه رحمان په جهان سترګې غړومه

۱۴

په يوه غمزه د سترګو يې فنا شوم سر ترپايه بې بنياده بې بقا شوم
ما د يار له غمه دم وهلى نه دى که مې دم وهلى نه دى هم رسوا شوم
ښه چه تن مې توى تومنه شه په عشق کښې هاله ځاځکى د شبنم وم اوس دريا شوم
زه د يار و مخ ته ګورم يار و ما ته چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم
په هجران کښې که ګدا وم کند په غاړه په وصال کښې يې بادشاه د امرا شوم
په خپل کلي په خپل کور کې مې غربت دى په صدف کې يتيم دُر غوندې يکتا شوم
مستوري راځخه يووړه مستو سترګو رحمان ځکه په وګړيو کې رسوا شوم
بادشاهي د ګدايانو په دعا شي زه رحمان ځکه بادشاه يم چې ګدا شوم

۱۵

د خپل ځان له خاکسارۍ نه بلند شوم لکه ګرد هسې شهسوار د هر هوا يم
کمينۍ هسې کامل کړم چې زه دروم لکه ځمکه درست جهان راسره بيايم
ما چې خپل معراج د دار د پاسه وليد د منصور په څېر رښتيا وينا (به) وايم
د منصور او زما هومره تفاوت دى چې ده نارې کړې په جهر زه خفيا يم
له عيانه هېڅ حاجت د بيان نشته زه رحمان به په خوله څه وايم چې دا يم

۱۶

تر هغه حده په هورته بد سړى شوم چې د درست جهان په سترګو کښې اغزى شوم
دنيا واړه خپله زيست و روزګار کاندي خو يو زه په دغه بار کښې کوږ لرګى شوم
تمامي جهان لمن راځخه نغاړي! سپين زړوکى مې اغوستي تور کودى شوم
هېڅ حاجت د هنر نشته و نصيب ته غزا وشوه که مهمند که داودزى شوم
د نوح زوى هم د يو نيک نيکه لمسى و ګنه زه هم د يو نيك نيکه نمسى شوم
کل وسواس له احتياطه پيدا کيږي زه له ډيري هوښيارۍ نه ليونى شوم
اوس عطا د آدميت راباندې وشوه! چې رحمان د هغه يار د کوڅې سپى شوم

۱۷

په ښه خوی له بد خواهانو بې پروا یم      په نرمی لکه اوبه د اور سزا یم
و هر چا ته په خپل شکل ځرګېږم      آیینه غوندې بې رویه بې ریا یم
قناعت مې تر خرقې لاندې اطلس دی      پټ د درست جهان پادشاه ظاهر ګدا یم
د غنچې څېر په سل ژبو خاموش یم      لکه بوی هسې په پټه خوله ګویا یم
په ژړا مې د خپل یار دیدن حاصل کړو      د شبنم په څېر له ګل سره یکتا یم
هم په دا سپینو جامو به معلومېږم      لکه ابر هم ګوهر یم هم دریا یم
دراز عمر مې حاصل شه له راستۍ      لکه سرو مدام سبز و تازه پایم
که چا لار د عاشقۍ وي ورکه کړې      زه رحمان د ګمراهانو رهنما یم

۱۸

زه له دې دنیا نه تلونی په شتاب یم      لکه پاڼه د خزان پښه په رکاب یم
که هزار آبادي کړمه په جهان کښې      غرض دا چې نهایت خانه خراب یم
که مې اصل د حیاتو له اوبو دی!      بیا خو دا چې د اوبو په سر حباب یم
دا جهان قصاب خانه کړه خدای و ما ته      پای بسته ولاړ په غولي د قصاب یم
چې د خدای له معرفته خبر نه شوم      معلومېږي چې یا دیو یم یا دواب یم
که صورت مې دسړي دی زه یې څه کړم      په معنا کښې د چارپایو په حساب یم
لکه بت چې په رڼو سترګو ویده وي      هسې زه په بیدارۍ کښې وړی خواب یم
په طاعت په عبادت مې زړه یخ نه کړو      همیشه د معصیت په اور کباب یم
سر د خدای و عبادت ته ایښوي نه شم      مدام ډوب د ګناهونو په دریاب یم
چې و خپلو ګناهونو ته نظر کړم      سزاوار د هر عذاب و هر عتاب یم
لکه څوك چې په خره سور وي مخ یې تور وي      زه هم هسې تر څښتن پورې بې آب یم
غزا وشوه که ګفتار کوم په ژبه      زه رحمان چه کردار نه لرم کذاب یم

۱۹

که هزار ځله نزدې د زړه په یاد یم      زه چې یار په سترګو نه وینم نا ښاد یم
که یار سل ځله وعدې د وصال وکا      زه له ډېرې تلوسې بې اعتقاد یم
په جفا و په وفا یې لارغه نه شي      پر حذر د ناز پرور په کړي داد یم
د بې نیازو په نیاز څه امید د کړو دی      زه پرون سلطان خسرو وم نن فرهاد یم
که د یار له لاسه اور را باندې بل وي      لکه شمع مستقیم په خپل استاد یم
بې له میني قراري را باندې زوړ دی      شپه او ورځ په حرکت کښې لکه باد یم
که همه عمر مې یار په غېږ کښې ناست وي      زه له غمه به د هجر په فریاد یم
یو زمان مې د زړه مراد موندلی نه دی      پیدا کړی خدای په اصل کښې نا مراد یم
د وصال په یوه کال مګر بر پای شم      د هفتې په هجر هسې بې بنیاد یم
چې یې نوره نتیجه نشته بې غمه      حق حیران د عاشقۍ په دغه داد یم
په وصال کښې مې د هجر طمعه نه وه!      اوس حیران متحیر په دا فساد یم
بې له عشقه چې مې پړی شه د پوزې      ګڼه نور له جملګي قیده آزاد یم
که مې پېرې که مې پلوري چاره نشته      زه رحمان د ښایسته و خانه زاد یم

۲۰

که مې څوك په فقيرۍ شميري فقير يم
که مې څوك په اميرۍ شميري امير يم

د دلبر و صدقې لره يې غواړم
هسې نه چه په دنيا پسې زهير يم

د خرقې خدمت مشكل دی او كه نه وي
زه هر دم و دغه چارې و ته ځير يم

هم پند اخلم هم پند وايم و هر چا ته
زه د ځينو يم مريد د ځينو پير يم

په هجران كښې خيال د يار را سره مل دی
په زندان كښې د يوسف سره اسير يم

په خندا كښې مې ژړا ده لكه شمع
له عالمه پټ پنهم د ځان په وير يم

آزادي تر دا په هورته بله نشته
چې بندي د يار د زلفو په زنځير يم

چې همېش په غوږ ناري د هجران اورم
رحمان ځكه خپل يار و مخ ته ځير يم

خوشحالا او دولتا مې غلامان دي
زه رحمان په پښتو ژبه عالمگير يم

۲۱

زه د يار په درد و غم كښې غرقاب خوښ يم
په دا درد كښې بې طاقت و بې تاب خوښ يم

كه ډوبيږم په اوبو كه په اور سوزم
د سرو شونډو په آتش و په آب خوښ يم

چې د يار د خط او خال نښې پكښې وي
زوړند سر په مطالعه د كتاب خوښ يم

تر دا پوچه گفتگويه چه يې اورم
په نغمه په ترانه د رباب خوښ يم

د ريا تر ناقبوله عبادته
د ساقي په ميو مست او خراب خوښ يم

چې نه علم نه تسبيح نه تلاوت وي
له دې هسې بيداريه په خواب خوښ يم

د طوبى د ونې سورى مې خوښ نه دی
ستا د مخ په لنبو سوى كباب خوښ يم

خاموشي كه هر څو لويه مرتبه ده
زه له يار سره په سوال و جواب خوښ يم

د يار ډيرې غمخوارۍ يم عاجز كړی
رحمان ځكه په خوردن د شراب خوښ يم

۲۲

زه د يار په دردوغم كښې شادمان يم
لكه گل د پريشانۍ په وقت خندان يم

ته زما و بې كسۍ ته نظر مه كړه
خداى ساتلى لكه گنج په بيابان يم

لكه ونه د ځنگل په ميوه پوره
په ويرانه ويرانۍ كښې آبادان يم

يو وينته مې د صورت بې عشقه نه دی
څوكيدار په هر نفس د خپل كاروان يم

د وصال مرغه د اوښكو دانو راكړ
لكه در و لعل په غاړه د خوبان يم

د كاملې عقيدې له بركته
د دونهى په غاړه ناست شاه جهان يم

رو ښنايي مې په طلب كښې شوه حاصله
شپه و ورځ لكه آفتاب په لار روان يم

د آشنا د تورو زلفو صفت څو كړم
پلى سر په لويه لار د هندوستان يم

بې مينه مې هېڅ حال د صورت نشته
لكه بې مال و متاعه تش دكان يم

د هوس بلبل ويسا را باندې نه كا
د افلاس په كبل ډكى د خزان يم

دلبرانو وته خاك تر تلو لاندې
د دې نور جهان په سر لكه آسمان يم

چې د يار په مينه سر و مال ښندمه
خلكو واورئ زه هغه عبدالرحمن يم

په هر دم كښې نوې نوې تماشې كړم
زه رحمان د خداى وكړو وته حيران يم

۲۳ چې هر دم له خپله ځانه گريزان يم
هم په دا لكه درياب د درو كان يم

مرگى تريخ دى چې ژوندون د چا شيرين شي
زه خورسند د يار تر وصل په هجران يم

ناداني مې دانايي شوه لكه طفل
په ناپاكو گوهره كې پاک دامان يم

چې د نفس د حرص ملک مې مسخر كړ
په هوا د پاسه تخت د سليمان يم

تن مې څه كړې چې زړه ياررا څخه يووړ
بېهوده د خالي خونې نگهبان يم

لکه گل چې په نار مات کړې اويزاند وي
زه هم هسې د ژوندو دمړو تر ميان يم
کله ځان راته ولي کله عاصي شي
نه خبر په خپل کمال نه په نقصان يم
خپل جانان مې هسې نقش دی په زړه کي
نه پوهېږم چې رحمان يم که جانان يم

۲۴

ژوبل ژوبل د خوبانو په نگاه يم
لا تر دې نه زيات غوڅېږم چې پناه يم
چې يوسف غوندې هزار په کښې پراته دي
بنديوان د هغه سيب ذقن په چاه يم
چې يې قد و قامت وينم په سترگو
عندليب په سر د سروې د خپل آه يم
د سپين مخ د تورو څنو له رغبته
منت بار د هرسفېد او هر سياه يم
لکه څوک چې په خره سپور وي مخ يې تور وي
زه هم هسې تر خپل خدای پورې روسياه يم
د رقيب خبرې وړم د يار دپاره
دعا گوی هم د نيك خواه هم د بد خواه يم
ښاخ د زلفو يې پخپله خدای راټيټ کړو
گنه زه د يار تر قد پورې کوتاه يم
بې له عشقه که مې عيب که مې هنر دی
نه خبر په عبادت نه په گناه يم
ځان هر گوره ناکاره را څرگندېږي
له هغې ور ځې را هسې چې آگاه يم
بې صبرۍ که يار په وصل کښې مهجور کړم
د پسرلي په مرغزار کښې وچ گياه يم
له اوله ټيټ ووهم بيا آه کړم
په نارو نارو خروس د صبحگاه يم
په جذبو جذبو يې را ښکم و ځان ته
هغه يار مې کاهربا دی زه يې کاه يم
لکه بار د ونې پوخ شي ځني رژي
زه هم هسې بار تړلی سر براه يم
اوس مې ځای په دا جهان کښې پاتې نه شه
خوځيدلی تر چهل و تر پنجاه يم
د رقيب علاج آسان دی بلا دا شوه
زه رحمان له خپله ياره ناويسا يم

۲۵

زه يو دم د ستا له غمه بې غم نه يم
بې غم ستا له ذکره فکره يو دم نه يم
هر زيارت لره چې درومم مراد مې ته يې
زه زائر د بتخانې د حرم نه يم
ستا د در په تورو خاورو باندې خوښ يم
بې تا خوښ په تماشا د ارم نه يم
چې د ستا په تماشا يم خبر شوی
نور خبر په تماشا د عالم نه يم
بې د ستا له زيبا مخه و بل مخ ته
منتظر د يوې ستنې تر سپم نه يم
که دا ستا د ښکلي مخ عاشقان ډير دي
زه په واړو کښې اول يم دويم نه يم
که له غمه دې و نه مرم هاله وايه!
چې يا ديو يم يا دواب يم آدم نه يم
زړه مې ستا په غمزه غوڅ دی غزا وشوه
که په لاس او په پښو روغ يمه گرم نه يم
سم قامت لکه الف يم په راستۍ کښې
لکه غشی څه فساد لره سم نه يم
خم د زلفو يم محراب دکړو وروځو
زه د مار و د لړم په څېر خم نه يم
که مې کم و بيش له لاسه واقع کېږي
يم سړی شکم لرم بې شکم نه يم
زه رحمان د بېلتانه له لاسه ژاړم
واقعه ده ډېره گرانه هېڅ گرم نه يم

# ن

١

هسې تېز درومي دوران — ګويا برق دی درخشان
د آسيا په څېر ګردش کا — په زمين باندې آسمان
ککرۍ دي د سړيو — چې وړېږي تر دا ميان
پيدا کيږي فنا کيږي — نه يې سر شته نه سامان
نه يې سر شته نه سامان — نه يې حد شته نه پايان
ځنې ډول وهي ښادي کا — ځنې وير کا د خپل ځان
ځنې شمعه غوندي ژاړي — ځنې ګل غوندي خندان
که يې ګورې يو ګلزار دی — که يې ګورې يو بيابان
که يې ګورې يو ګلشن دی — که يې ګورې يو زندان
يوه هسې تماشا ده! — چې يې هېڅ نشي بيان
کيفيت ئي مونده نه شي — په دليل و په برهان
چې يې کومه خوا رفتن دی — يا يې چېرته دی مکان
خدای خبر دی په دا علم — هېڅ خبر نه دی رحمان

٢

ډېر ياران و د ګل خان و جمال خان — پکار نه شه يو په وخت د زارستان
د همه واړو يارانو مخ دې تور شي — که به ځوك وبله ياري کا په دا شان
چې يو يار په سيوري پروت وي بل په اورکښې — وهغو ته به ځوك څه ويي ياران
هېڅ تعريف يې په دا ژبه وايه نه شي — صد رحمت شه په يارۍ هم د ګل خان
تر دا په هورته د يارۍ شرطونه څه وي — چې په اور کښې دواړه وسوزي يکسان
چې له آله له اولاده سره وسول — خدای دې نه کا ځوك دا هسې مظلومان
چې په اورکي يو د بل دپاره سوزي — ما ليدلي نه وو هسي مخلصان
څه رنګ شوخ و هغه اور و هغه خلق — چې يې مړ نه کړو د اوښکو په باران
الغياث دی الغياث دی الغياث دی — چې انسان کا هسې ظلم په انسان
د نمرود چارې مې وليدې په سترګو — چې يې اچول و اور وته نبيان
هم دې زمکي هم آسمان ته تعجب کړم — چې نه زمکه په نارو شوه نه آسمان
هم دې لويو لويو غرونو ته حيران يم — چه ونه لوښته له وېخه سر غلطان
له دې خپله سپيه نفسه مې زړه بد شه — چې اوبه ځښي يا خواړه خوري په جهان
عالم وايي چې قيامت به په جمعه وي — وليد ما په يکشنبه په دا دوران

هزار حیف دي چې دا هسې رنګه چارې
واقع کېږي د دنیا په سود و زیان

سر بند نه و ګویا دښت د کربلا و
چې سیلاب شو د سرو وینو پرې روان

په عیسی و په دجال کښې ګناه نشته
دا مکرونه دي د نفس و د شیطان

عزیزان یې ځبله ووژل پخپله
دا همه واړه تقدیر دی د سجان

هسې نه چه دا یې وکړه نور به نه کړي
چې یې زړه شي هغه کاندي بادشاهان

شاه عالم اعظم وګوره چې یې سخا کړ
په خونونو واړه ملك د هندوستان

و دارا و اورنګ زیب وته حیران یم
چې یې څه چارې واقع شولې تر میان

د حسن حسین غزا دې څوك په زړه کا
چې همه واړه په تیغ شول شهیدان

د دوی غوښې اوښکو وینو رغړولې
بې حسابه هسې خلق شه طوفان

هر چې اهل د دنیا دي حال یې دا دی
که سړی دی که پیری دی که حیوان

آدم زاد په زمکه یو بل سره وژني
په دریاب کښې وبله غوښې خوري ماهیان

لکه غوښې چه ماهیان خوري په دریاب کښې
په هوا کې هم دغه کاندي مرغان

خزنده و پرنده دي د دې دهر
همه واړه یو تر بل مشت و ګریبان

مرداري د دې دنیا خو هم دغه ده
ځکه بېرته ځنې ګرزي درویشان

مکاري د زماني څه هومره نه ده
چې رحمان یې چا ته وکاندي بیان

۳

دنیا دار د دنیا کار کا زه د دین
خوانین زما په ملك دي خوشه چین

هېڅ کم نه دی تر سپین مخیو دلبرانو
بلکه ښه دی زما شعرنمکین

مراد له تورو سپینو واړه دلبري ده
موقوف نه دی دغه کار په تور و سپین

مرتبه د سلیمان چې چا له ورشي
هېڅ پوره نیمګړی نه دی پر نګین

چې رنګین رنګین مضمون پرې کښلی نه وي
څه پکار دی د بیاض ورق رنګین

خوند په خوله دی نه په ښه نه په خواړه دی
آب و خور که د چا تلخ وي که شیرین

غرض خوب دی که په خس وي که په خار وي
څه حاجت دې په بستر و په بالین

مصری توره هم په بد غلاف کښې زنګ شي
خدای څوك مه کړه د بدانو همنشین

څه عجب که په ورځ مهر په شپه ماه شي
د رحمان آشنا چنان دی هم چنین

۴

که ترې ولوښته شاهان و سلطانان
هېڅ نیمګړی په چا نه شه دا جهان

که هزار هزار فنا شي په یو دم کښې
بیا پیدا شي په یو دم کښې هزاران

د رفتن د آمدن حساب یې نشته
لکه بحر چې بهېږي بې پایان

یو د بل په غم نه نرم وي نه ګرم
هم د هغه زده چې وریې شي په ځان

پیغمبر غوندې صاحب تر دنیا تېرشه
دا دنیا یې ویرانه نه شوه په هجران

چې دا هسې عالم لاندې شه تر خاورو!
د چا یاد وي ماو تا غوندې سګان

که غلبیل کړم د تمامې دنیا خاورې
بیا به نه مومم دارا و شاه جهان

بوی د نام و د نشان یې پاتې نه شه
چې دعوی یې کړه د نام و د نشان

که دروغ وایم ته ورشه نظر وکړه
د خپل پلار او د نیکه په ګورستان

چې یې ته په دواړو سترګو ښکلولې
ګوره څه شوې هغه خولې هغه لبان

چې مدام ئې په قربان قربان بللې
اوس دې غږ در باندې وکا چې قربان

د رحمان و سوزان شعر ته حیران یم
چې یې اور بل شوی نه دی په دیوان

۶

ته چې هسې ګاه يې ترش ګاه يې خندان
له عاشق سره کينه کړې که احسان

له احواله دې چا نه زده چې به څه کړې
کله جور کله لطف کړې عيان

رنځ راحت د عاشقانو واړه ته يې
دا دروغ دي چې وصال دی يا هجران

هغه شونډې چې خوږې دي تر شکرو
له ښکنځلو يې عار نه کا عاشقان

رجوعات د ښايسته وچا ته نه وي
هرګز نه وي سرکوزي د سروې شان

دغه هسې رنګ ښايست لکه چې ستا دی
نشته دا رنګه ښايست دهيڅ انسان

قصد تر هسې حده ولې کړې ګل رخه
چې له ډېره نازه وژني عاشقان

د مريې صورت څه روغ له کانې نه وي
نشته کانې څخه ستا د جفا توان

و هر چا وته چه ستا قوت رسيږي
هلته نه رسي قوت د درست جهان

ستا له جوره زهره نه لري چه آه کا
که کشور د عاشقانو شي ويران

خوار حيران لکه عاشق دی ستا له دره/درده
خدای دې هيڅوک هسې نه کا خوار حيران

لکه ډېر وايي د وصل راحتونه
دغه هسې د فرقت دی سخت زندان

د رخسار نښې دې واړه د خورشيد دي
چې يې درست جهان له نوره دی روښان

له هوسه دې هر ګل کره خندا شوه
چې يې وليد ستا د حسن ګلستان

کله وي چې نصيحت کاندي‌عاشق ته
که له حسنه دې آګاه شي زاهدان

رنګ د روی دې لري رنګ د سرو ګلونو
توري څڼې دې ښاخونه د ريحان

سياهي د نوي خط دې هسې زيب کا
لکه ښکلي واړه توري د قرآن

و کوهي ته چه لغزش کا کل خطر وي
کل خيريت دی کوهی ستا د زنخدان

که د درو تجلي ده ډېره ډېره
در خجل شي چې ښکاره شي ستا دندان

ته سلطان د ښايسته و يې دلبره
دا نور واړه ښايسته دي نوکران

که دا نور ښايسته ستوري ويل کېږي
ته خورشيد غونډې صورت لرې روښان

له هر چا چې اوريده شي دغه وايي
چې ښايست دې زره نه لري نقصان

در و لعل شو ويل د رحمان څکه
چې د ستا د لعلو شونډو شه ګويان

۷

چېرته د يار شونډې چېرته غم د دل و جان
چېرته کوټي لال و چېرته لعل د بدخشان

پاك اومنزه دی عشق د نفس له خاصيه
چېرته چاه د ګيډې چېرته چاه د زنخدان

لږ تفاوت نه دی د رندی د زاهدی
چېرته زلمی جونه چېرته کونډې يتيمان

واړه بې وقوف دي چه څوك دين په دنيا پلوري
چېرته پنځه ورځې چېرته عمر جاودان

ځار شه د هوا و حرص خيال تر قناعته
چېرته ملك د مصر چېرته ده د غلامان

نه شي د ملنګو د خانانو سره کلي
چېرته عزيز خان چېرته ملنګ عبدالرحمن

فراموش مې دی د ستا په مينه ځان
ځان لا څه دی بلکه عمر جاودان

لکه زه چې ستا د در په خاورو خوښ يم
همره عيش و طرب نه لري شاهان

لکه زه چې ستا د غم پندونه اخلم
همره پنډ اخيستی نه شي پهلوان

هسې بې سر و سامان يم ستا په عشق کښې
چې آ ګاه نه يم په سر و په سامان

هسې بې شرابو مست يم ستا په مينه
چې خبر نه يم له زمکي له آسمان

دا به څه رنګ شي چې ته د کال وعده کړې
په ما نه تېرېږي بې تا يو زمان

تمامي عمر د ستا په طلب ورك يم
لټوم دې په هر ښهر په بيابان

که له دره يې شړې که يې پرېږدې ته
ډېر مين دی ستا په مخ عبدالرحمن

د سړي صورت څه روغ د کاني نه دی — نشته کاني څخه ستا د جور توان

٨

څو به شمیرم زه غمونه د هجران — همره ډېر دي لکه ریگ د بیابان
د سړي د دښمنی طاقتمي نه وه — خدای را پېښه د ښمني کړه د اسمان
لکه څوك چې د اوښ بار په میږي گېږدي — هسي زه یم په خپل غم پوري ناتوان
لکه اور د بېلتانه چې په ما اوري — چا لیدلی گڼه اور دی په دا شان
د یار غم به مې هغه سړی په شمار کړي — چې شمیرلي یې وېښته وي د خپل ځان
که څوك وايي حال دی څه دی په هجران‌کښې — په خاطر دې تصور کړي دوزخیان
نا قرار زړه مې د یار په هوا والوت — تش صورت مې په ځای پاتې شه پریشان
د یار یاد مې زړه په غټو سترگو یووړ — لکه بت په دیوال کښلی یم حیران
ما وې زړه د مومن عرش دی خبر نه وم — چې به عشق زما دا عرش کاندي ویران
عاشقی تر هغه حده بې هوښ کړم — چې نه هوښ لرم نه صبر او نه سامان
لور د لوره د تهمت په غونډو ویشت شم — ملامت را باندې وايي درست جهان
چې دا حال ورباندې نه وي ورغلی — په ویل به څه گروهېږي د رحمان

لکه غم د آشنایی په ما ورېږي — یاد به نه وي د چا هسې گڼ باران

٩

ورکه عاشقي شه هم یې نوم هم یې نشان — زه یې هسې خوار کړم لکه شگې د بیابان
زه د عشق په کار کښې تېر تر سره هم له مال یم — دریغه که په سرمې دا مشکل کا خدای آسان
کښطوتم د عشق په آدم خورو گردابونو — نه په وړاندې تلای شم نه په بېرته گریزان
رنځ د عاشقی چې زه ظاهر کړم و طبیب ته — هېڅ ویلی نه شي طبیبان او حکیمان
شهریاران د دنیا واړه گدایان دي — زه د عشق په اور کې سوی سرگردان
نه مې حال و چاته ووې چې دا څه دی راشه — عالم واړه په فکرت تللی حیران
د عشق اور راباندې بل شو خدای خبر دی — اوس رسوا شوم په عالم کې چاک گریوان
راشه عاشقي مه کړه رحمانه او که نه وي — تل په اور به ناست یې که پادشاه یې د جهان

١٠

خان سلطان د دې جهان — آخر درومي خوار حیران
د قضا په ځېل تړلي — په مثال د بندیوان
شیرین ځان ور څخه درومي — نه یې زور رسي نه یې توان
که ښندي مال و ملك واړه — هېڅ رنگ نه مومي امان

نه يې مل نه يې حامي وي
درد يې ورشي په خپل ځان

درمانده وته ولاړ وي
وزيران او وکيلان

هېڅ دارو يې کړلينشي
کوز کوز ګوري حکيمان

بادشاهي يې پاتې کېږي
زړه يې چوي په ارمان

چې يې روح له تنه بيل شي
نور پرې ژاړي فرزندان

يو ساعت ورباندې ژاړي
آخر صبر کړي خواران

بيا يې غسل لره واخلي
په تخته باندې عريان

په جامو يې هوسېږي
مرده شوی او غسالان

چې له قبره يې بازګشت شي
مال يې يوسي وارثان

په مسند يې دعوی کاندي
هم دوستان هم دښمنان

سهېلی به يې تالا کا
هغه خپل مصاحبان

نام نشان يې هسې ورک شي
لکه عين بې نشان

نه يې نقش پاتې کېږي!
نه يې اسم په جهان

دا دنيا آب روان ده!
نه شي نقش په آب روان

که هزار رنګ آبادي کا
نهايت خانه ويران

لکه باد هسې به تېر شي
کاروبار د دې دوران

دا بيان دور و دراز و
کوتاه قطع کړ رحمان

۱۱

که پخوا تر آشنايیه وای بېلتون
ما به نه و له چا کړی پيوستون

چې مي يار په سترګو وليد ما ګمان کړو
چې هم دا ساعت مي بيا مونده ژوندون

په نيمګړي داد خبر د فلك نه وم
چې به بيا شي په ستنه را ځخه ستون

نن ساعت چې له دې حاله خبردار شوم
ځکه تر نن ورځې بهتره وه پرون

هر زحمت چې په ما راشي شکرانه کړم
عاشقی تر هسې حده کړم زبون

اوس که لاس پر بله مړم هېڅ سود نه کا
هغه چاره چې له لاسه شوه بيرون

لکه نمر په ځلورم آسمان ځلېږي
محبت يې له حجابه کړم بيرون

چا چې رخه له ښه مخه را کوله
اوس دې سور په نيلي ګرزي د ګردون

په دا هسې حال کښې ځه رنګ صبوري شي
چې د ښمن دې کامراني کا ته محزون

که په صبر سره تور کاني لعل کېږي
لعل ئي مه کړې په دا هسې جګر خون

د دنيا هوس په ما باندې حرام شه
د هوسی هسې کړم شپه په مېږتون

دريغه يو ځله هغه زما په حال شوای
چې و ما ته لولوي صبر و سکون

و رحمان ته ځان هغه ګړی آسمان شي
چې د ستا په غم کښې ناست وي سرنګون

**و**

١

هېڅوک مه شه ګرفتار د تورو زلفو
مه اسير شه په کفار د تورو زلفو

هم په شان د تورو زلفو به پريشان وي
هر چې کاندي انتظار د تورو زلفو

د محشر په عالم کله قراري وي
څوك به څه غواړي قرار د تورو زلفو

څو يې صبح د قيامت دميده نه شي
ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو

مګر شمع د سپين مخ شي باندې بله
ګڼه نشته بل انوار د تورو زلفو

تار په تار کا د عاشق د خاطر خونه
چې حلقې شي تار په تار د تورو زلفو

چې تمام جهان يې ښتى دى په دام کښې
څوك به څه کاندي انکار د تورو زلفو

زه له کوم يوه کمنده سر وکاږم
کمندونه دي هزار د تورو زلفو

په تندي د محتسب کا دره ماته
چې پرې راشى دره دار د تورو زلفو

هومره زړونه پېيلي په هر تار دي
چې تسبيح کړه خداى زنار د تورو زلفو

ملك د هند و د حبش يې واړه زير کړ
چې پيدا شه شهريار د تورو زلفو

ښامارانو غوندې ګرزي په ګنجونو
نشي هېڅ په زړه کې ډار د تورو زلفو

که بل مار چيچل په لاسو يا پر پينو کا
په زړه خوله لګوي مار د تورو زلفو

د رحمان تر قلم مښک و عنبراوري
چې آغاز يې کړ اشعار د تورو زلفو

٢

او ښکې نه لري حساب زما د سترګو
بې حسابه شه سيلاب زما د سترګو

سياهي مې همه واړه سفېدي شوه
هسې پرېولې شه کتاب زما د سترګو

که مې سره دي که مې سپين دي که مې تور دي
اوښکو يووړ هر اسباب زما د سترګو

چې رخسار د هغه يار را څخه پټ شي
حبطه شي آب و تاب زما د سترګو

چې ګوزار يې په دا ګرمو اوښکو نه شه
مګر کاڼي دى حباب زما د سترګو

چې مې نقش په زړه سرې شونډې د يار شوې
کان د لعلو شو ګرداب زما د سترګو

که نور خلق د آفتاب په رڼا زيست کا
مخ د ترکو دى آفتاب زما د سترګو

ما يې خيال لره ابلق د سترګو زين کړ
قدم نه ږدي په رکاب زما د سترګو

لکه تښتي چې وحشيان له مردمانو
هسې وتښتيده خواب زما د سترګو

ما رحمان چې سترګې روڼې په خپل يار کړې
اوس محال دى اجتناب زما د سترګو

٣

هر ساعت زما د غوږ په تاوولو
د فلك لاسونه شنه شوه ترڅنګلو

هومره غم د بېلتانه را باندې راغى!
چې حسابيې نه په خوله شي نه په کښلو

هغه سترګې چې نرګس و هم بادام دي
تيرې تورې دي زما په قتلولو

هغه شونډې چې شيرينې دي تر قندو
ما هېڅ فيض ځنې بيا نه موند بې ښکنځلو

دا کاږه کاږه بانه او کږې وروځې
نور څه نه کا بې کږو وهلو

په شپه نوکې د عاشق په وينو سرې کا
سبا پورې کا نکريزې په منګلو

دا زما د قاتل لاس دى نه پوهېږم
که تر باغ وتلى ښاخ دى د سرو ګلو

دريغه مرګ ئي په دنيا کښي نيمه خوا شواى
ښايسته غونچې يې پرې يستې د ګلو

هسې بند شه په کمند د تورو زلفو
چې حيران يم د رحمان په خلاصولو

٤

تا چې رنگ د میو ورکړ و لبانو — اور یې پورې کړ په کور د می خورانو
چې دې جوړه کړه لینده د کړو وروځو — څو به ښکار کړې په حرم د غزالانو
چې دې اسم د ځنځیر په زلفو کښود — معطر دې کړ دماغ د دیوانگانو
په رخسار چې دې د خط غبار څرگند شه — سر بلنده شوه فرقه د خاکسارانو
کاږه غشي واړه بېرته ځي له ښښي — زه آزار کړم ستا کږو کږو مژگانو
چې زما او یار تر منځه جدایي کا — کاڼي پرېواته په خونه د بدانو
که مې چېرې خواست د خدای په در قبلېږي — سوال به زه د عمر کړم د مهوشانو
سور پیزوان دې په سرو شونډو هسې زیب کا — لکه جیم په قلم ښکلی کاتبانو
د سرو تیک دې شهزاده په جبین پروت دی — شینکی خال دې محاصل په بندیوانو
دواړه لېچې دي وکښلي مصری توری — در پوهېږم سر به پرې کړي د خوارانو
ستا له غمه په ځان زړه د رحمان سوزي — لکه شمع په زیارت د شهیدانو

ستا د خولې له حقیقته صوفي څه زده — له دې رازه څوک خبر وي بې رندانو

۵

چې کوتلي دي په تېغ ستا د چشمانو — سر حلقه دې د جمله و شهیدانو
ستا وصال د سر پرېکړیو دی دلبره — ژوندي نه مومي جنت بې مردگانو
د پیرئ سیوری عاقل لره ضرر دی — دا مقام دي د سر تورو دیوانگانو
په سرپوښ محل کښې نور د آفتاب نه وي — دا دولت دی نازل شوی په ډاگیانو
هم په دا زما له سترگو وینې څاځي — چې دي نقش په کښې رنگ دی د لبانو
مشکین خال دې په سرو لبو هسې زیب کا — لکه مهر په مخزن د در مرجانو
ما سوای له یاره هر څه دي رحمانه — واړه کفر دي په دین د عاشقانو

هر اشنا چې مخ پنهان کا نه یې مومم — که یې غواړم شپه او ورځ په سپرو پلیو

۶

که نظر کا څوک په کار د درویشانو — خود به ووینې وقار د درویشانو
په دغه لاره به ورشي خدای رسول ته — که څوك یون کاندي په لار د درویشانو
هر گفتار به یې د خدای په در قبول وي — چې قبول یې وي گفتار د درویشانو
هسې گرم بازار بل په جهان نشته — لکه گرم دی بازار د درویشانو
په یوه قدم تر عرشه پورې رسي — ما لیدلی دی رفتار د درویشانو
هومره خلق یې زیارت کا پس له مرگه — چې بازار وي په مزار د درویشانو
پادشاهان د دنیا واړه پرې پراته دي — لکه خاورې په دربار د درویشانو
هر بهار لره خزان په جهان شته دی — خزان نه لري بهار د درویشانو
د جنت د باغ گلونه به یې هېر شي — که څوك ووینې گلزار د درویشانو
چې دنیا یې کړه د خدای د پاره ترکه — صد رحمت شه په روزگار د درویشانو
د قارون و حال ته گوره حال یې څه شه — راشه مه کوه انکار د درویشانو
په هر چا چې د غضب لینده کا ښښه — خطا نه درومی گوزار د درویشانو
درست دیوان د رحمان ځار تر دا غزل شه — چې بیان یې کړ کردار د درویشانو

۷

د پېزوان غمی دې زېب کا پر لبانو
دواړه زلفې دې ځنځیر د عاشقانو
دا سور ټیک دې شهزاده پر اوربل پروت دی
شینکی خال دې معاني د بندیوانو
دواړه لب دې ښایسته تر سرو یاقوتو
شرمولې ده ږلی ستا دندانو
تور اوربل دې لکه مار په جبین پروت دی
شینکی خال دې مواصل د رنځورانو
د پیرئ سیوری عاقل لره ضرور دی
دا مقام دی د سرتورو ملنګانو
ستا وصال د سر پرېکړیو دی دلبره
ژوندي نه مومي جنت بې مردګانو
د لیلی دکوڅې سپی بر مجنون پېښ شو
په باربار یې ښکلا وه پر دوو عینانو
ماسوا له یاره هرچي وي رحمانه
واړه کفر دی په دین د عاشقانو

٨

که هرڅو په صحرا سر شوم هم په کلیو
بیا مي نه موند هیڅ خبر د هغو تللیو
خدای زده کومي خواته لاړل حال یې څه دی
خبر نه یم د ګړنګ له پرېوتلیو
له دې غمه مي زړه چوي که څوک خبروي
لږ په ما هم خبر وکړئ خدای ساتلیو
پس له دې به چیرته درومئ ځای مو کوم دی؟
راته وایئ د دنیا په سرای راغلیو
ګوندي ستاسو په مخ زه هم ښښنده شم
لاس د خدای و درته نیسئ پسندلیو
هېڅ خبر یې په هېڅ لوري موندی نه شي
که یې غواړې شپه او ورځ په سپرو پلیو
له ناپوهه خلکه نه کېږي پوښتنه
زه و تاسي وته وایم پوهېدلییو
خبر نه یم چې په باب مې کښلي څه دي؟
زه رحمان په اندېښنه یم له دې ښکلیو

## ه

١

د دلبرو په درګاه
نه حرمت لرم نه جاه
غوڅوي مې د زړه ولې
د چشمانو په نګاه
هومره قدرمې پرې نشته
لکه قدر د ګیاه
هېڅ خبر له ځانه نه یم
چې یې څه لرم ګناه
یو نظر را باندې نه کا
از برای عند الله
که له غمه یې سر پټ کړم
بل سر نه لرم پناه
د رحمان په څېر و مه
حال احوال د چا تباه

٢

چې یې ولیده ستا حسن بې حسابه
له دې قصده تاو پیدا شه له آفتابه
په آرزو دې د نرګس سترګې څلور شوې
غنچه سره د زړه په وینو شوه غرقابه
ستا په غم مې سترغلي سرې سرې ناغې شوې
یا خیمې دې سیاه پوشئ سره طنابه
که دې زلفې په مخ پېچ و تاب شوې ښایي
وینته څه طاقت لري د اور له تابه
زه چې خدای د ستا د غم سره آشنا کړم
خوشحالي مې نور نایابه شوه نایابه
سترغلي ممې د فراق په ژړا سره شول
د سبزې اثر یې پاڅېده له آبه
ماه خورشید دې په ښایست پورې شرمېږي
ځکه مخ فنا کوي تر کوه قافه
زه دې پېژنم په اصلکښې خاکي یې
ځان به څو څنډ ي په ګوته له ترابه
څو دې خیال د آشنا ګرزي په لیمهکښې
خبر زده کړه ته د اوښکو له سیلابه
د رحمان به بخت هاله له خوبه ویښ شي
که سترګې ورته پورته کړې له خوابه

چې دمخ و آب و تاب ته یې نظر کړم
را ته هېڅ شي د ګلونو آب وتابه

٣

ورځ دې تېره په شومۍ کړه شپه له خوابه
خدای به کله يادوې خانه خرابه

په شتاب شتاب دې تله دي که پوهېږې
غافل مه شه د دې عمر له شتابه

دلته دم او قدم دواړه په حساب دي
پل غلط له‌لارې مه ږده بې حسابه

راستولی خدای حساب دی په کتاب کښې
خبر زده کړه له حسابه له کتابه

ته و خپلو نيکو بدوته نظر کړه
چې بدي دې څو تيری کړي له ثوابه

په هغه جهان به څنګه ځواب ورکړې
چه په دې جهان عاجز يې له ځوابه

عاقبت به تورو خاورو لره درومې
ځان به څو څنډې په ګوتو له ترابه

زه دې پېژنم په اصل کې تراب يې
ته چې ځان څنډې په ګوتو له ترابه

څو په دا جهان اوبه له تندي نه شې
په قيامت به دې سينه نشي سيرابه

دکاغذ په کښتۍ سَير به کړې تر کومه
دا کښتۍ به دې مرګی کاندي غرقابه

چې‌آفتاب يوه نېزه شي بيا به څه کړې
اوس چې سپوري لره تښتې له آفتابه

په آزار د چا راضي مه شه رحمانه
که خلاصی په قيامت غواړې له عذابه

۴

په ورځ ناست يې بې طلبه
په شپه خوب کړې بې ادبه

لاس دې وخاته له دواړو
هم له روزه هم له شبه

نه دلې شوې نه هورې شوې
تر منځ ورک شوې مذبذبه

عبادت دې په ريا شه
په مذهب کښې بد مذهبه

مدام بند يې په سبب کښې
بې خبر له مسببه

واړه تشې شړومبې شاربې
خبر نه شوې له مطلبه

ته اوده وربانديې سور يې
آس دې يون کا بې جلبه

تن دې تش په توره سره
آس دې داغ کړ بې منصبه

د راکب چې واك پردی شي
سود يې څه وي له مرکبه

له ژونديو سره ناسته
له مرده و مرکبه

هلک لوی شوې په اوبوکښې
اوبه نه پېژنې کبه

لکه کا نې يا کودری
په درياب کښې تشنه لبه

نا آ ګاه ځان آ ګاه بولې
دا خبره ده عجبه

مراد له زهده معرفت دی
نه تش ځان وژل اقربه

د رحمان شراب له عشقه
نه له انګور نه له عنبه

۵

ته شها يې شکر لبه — ګل رخساره سيم غبغبه
په نادرو کښي نادره — په عجبو کښي عجبه
په جمله ؤ معشوقو کښي — بوالعجب يې منتخبه!
بې زيوره ښايسته يې — بې ترتيبه مرتبه
دغه داد د الهی دي — بې تالاشه بې طلبه
آب حيات چې حيات بيا موند — ستا د شونډو له سببه
مخ دي سپين تر سپين سبا دی — زلفې تورې تر تور شبه
ستا د مخ عرق دانه وو — زينت رانيو له کوکبه
د ښايست مخئ دې نشته — تر مشرقه تر مغربه
د وصال مونده دې ګران دي — مګر فضل شي له ربه
چې د رب فضل پرې وشي — هغه خلاص شي له غضبه
دا دولت د خدای په داد دی — مونده نه شي له نسبه
عشق څه هسې علم نه دی — چې حاصل شي له مکتبه
مکتب حال د مذهب وايي — عشق سوا دی له مذهبه
د عاشق مذهب هم دا دی — چه دم نه وي بې مطلبه
ستا د حسن په تعريف کښي — رحمان ګونګ دی له ادبه
۶

په هر زړه چې د يار مينه شي غالبه — بله مينه يې هېڅ نه وي مناسبه
نورې واړه مرتبې به ورته هېڅ شي — که خبر شي څوك له هسې مراتبه
لياقت يې هر وګړي څخه نشته — عاشقي يوه پايه ده عجائبه
د طلب له کوتاهيه وېره وکړه — که هر څو دې لار کوتاهه ده طالبه
عشق څرګنده خزانه ده خوار هغه شه — چې څرګنده خزانه شوه ترې غائبه
غوره خط د مهرويانو تر خط نشته — که هزار رنګ کتابونه کړي کاتبه
هېڅ يې مه پوښته له فرضو له واجبو — په هغو چې عاشقي کړه خدای واجبه
عاشقان تر سر و ماله يار ته تېر دي — خدای دې دا طايفه نه کاندي کاذبه
زه رحمان د خپل صاحب په رضا زيست کړم — څه پکار دی بنده د بنده بې خپل صاحبه
۷

تا چې په دا تورو سترګو وکاته و ما ته — زړه دې زما تور کړ له دې نوره مخلوقاته
ما خو چې ته ولېدې هغه ساعت مې ووې — نوره به مې مينه د زړه نه شي له تا ماته
شېخان او زاهدان چې نصيحت و ما ته وايي — نه دې خبر شوي ستا د مخ له محسناته
څه شوه/وشو که زه انګشت نما شوم ستا په مينه — لا تر ما نه خوښ يې و قاضي ته هم ملا ته
مرم په دا چې ما له تا جار باسي هغه خلق — بيادې په ديدن ترما ړومبی څغلي و خوا ته
زه رحمان چې دې وينم وايم خدايه خير کړې — ګډه ښاپېرئ ده د بنی آدم له ذاته
۸

که د عقل څه اثر لرې و سر ته
په نظر د هغو خاورې سره زر کیږي
بې منته جام د زهرو ښنلی ښه دی
د یوسف له حاله زده کړه دغه پسه
دې فلك و چاته هيڅ بخښلی نه دی
د خروار دعوه یې وګنه ممکنه

که له خدایه دي وخلق وته مخ شي
همیشه به در په در ګرزې رټلی
د دې سست بدن منت په رحمان باندې
۹
چې نظر کړم د خوبانو و رخسار ته

له دهشته یې ریبار پوښتېدای نه شم
خلوتیان لکه برده پکښې خرڅیږي
ته چې ما پو ښتې د یار له حقیقته
درد و غم د عاشقۍ څه هُمره نه دي
زه و یار چه سره خپل غمونه شمار کړو
ددنیا چارې همه واړه په وار شي
رحمان هسې وزګار چېرې دی له عشقه
۱۰
ما د دهر غم وهلی دی په لته
که اوبه دي د حیاتو په ظلمت کښې
هغه یار چې و ما جام د میو راکړ
بې خودۍ د دنیا له غمه خلاص کړم
د د ښمن په دښمنۍ مې خندا کیږي
بې خیري مې کل په خیر باندې شمیرلې
مړ بهتر دی تر هغه چه څوك بې پت وي
دا ستۍ چې په اور سوزي مراد یې دا دی
خدای هاله د سړي یاد شي چې درد مند شي
په تدبیراو په تلاش کله مونده شي
که څوک سل نصیحتونه ورته وکا
زه رحمان په سل حلقو د زلفو بند یم

لاس په سر مه شه د هر ګېډې و در ته
هر چه نه لري نظر و سیم و زر ته
نه هغه چې منت بار وي و کوثر ته
وایه حال د زمانې و برادر ته
چې یې نه دی راپېرودي ځنې بېرته
که رتۍ یا جو دانه به یې وي درته
که یې پور وي د یوې جو دانې درته
له فردوسه به دې مخ شي و سقر ته
د استوګنې ځای به بیا نه مومې چېرته
چې له خپله دره تلای نه شي بل درته

آیینې غوندې حیران شم و دې کار ته
حق حیران د خدای په کړه شم و دې کار ته
خدای زده څه به یې ویلي وي ریبار ته
غېږ یې نه خیژي د حسن و بازار ته
څوك د یار خبرې کاندي و اغیار ته
چه ئي عقل د چا رسي و مقدار ته
یار و ما ته حیرانیږ ي زه و یار ته
ما د یار غمونه نه پریږدي و وارته
چې غوږ ونیسي ناصح غوندې وزګار ته

د پیالې د صراحیه له برکته
ساده رویو و ما راکړې بې ظلمته
د دښنو وینې مې وڅښې بې شدته
لار مې بیا مونده بیرون له شش جهته
لکه شمع د مقراض له خصومته
د زمرې په خوله کښې ناست یم فراغته
په یارۍ کښې دې خدای نه کا څوک بې پته
زه په اور کې سوې ښه یم نه بې پته
کمه نه ده دردمندي تر عبادته
چې موقوف وي هغه کار په عنایته
غوږ یې نه وي د هیچا په نصیحته
لا د پاسه سور پیزوان شه بله نته

۱۱

ستا په مخ کې څه حساب د جمال نشته
ځکه ما څخه د صبر مجال نشته

ته د سر و د مال ویره په ما مه کړه
ویره ما څخه د سر و د مال نشته

زه په دا سبب له وېرې سره ریږدم
چې ستا وېره کښې ثواب دی وبال نشته

که وعده د یوې چارې یو ساعت کړې
د هغې چارې امید مې په کال نشته

د شهید و حال ته گوره حال یې څه دی
بې تا هسې زما حال دی بل حال نشته

روښنایی مې د چشمانو ستا دیدن دی
په دا کور کښې بل څراغ و مشال نشته

په جوییار زما د سترگو سرو ته یې
په دا نهر باندې بل څه نهال نشته

مخ دې بې خط و بې خاله هسې زیب کا
چې یې هېڅ حاجت په خط و په خال نشته

مخامخ که راته وگورې دلبره
په کاته کښې دې ثواب دی وبال نشته

د آفتاب په مخ کښې هره ورځ زوال وي!
ستا د حسن په آفتاب کښې زوال نشته

په جذبه د محبت مې ځانته راښکه
نور حاجت مې په رویبار او دلال نشته

ستا په یادو کښې رحمان هسې مشغول دی
چې په زړه کښې یې هېڅ غم د وصال نشته

١٢

مخ ته که دې نمر وایم د نمر زلفې تار تار نشته
سرو که ستا قد بولم د سروې یون رفتار نشته

هرڅوك چې دې ستا و آتشین رخسار ته گل وایي
پوچ وايي د اور په مخ کښې وقر د گلزار نشته

زلفې دې ناحقه خلق بولي په سنبل صنمه
ولې چې له مښکو سره هېڅ د گیاه کار نشته

ما چې غږ په غوږو ستا د در د سپیو واورید
هسې رنگ بلبله په چمن کښې په گفتار نشته

ستا دیدن هغه کا چې یې سر په تنه پاس نه وي
ولې چې د سر د ښښتن حورو وته لار نشته

یار به د رقیب په لورې خدای نه کا رحمانه سم
ولې چې د سپیو فرشتو سره څه کار نشته

١٣

که څوك لاس له سوده وکاږي زیان نشته
په ملنگ باندې قلنگ و تاوان نشته

د وفا خریدار بلې خوا ته درومي
دا متاع د زمانې په دکان نشته

جدایي له اشنایۍ نه پیدا کېږي
نا آشنا لره هېڅ غم د هجران نشته

مگر ځان و خدای ته وسپارې په امان شي
گنه بل خوا ته د هېچا امان نشته

هغه یار به زه و کومې خوا ته غواړم
چه یې هېچېرې منزل و مکان نشته

دلبران که هر څو ډېر دي په جهان کښې
زما یار غوندې دلبر په جهان نشته

چې هم قد لري هم زلفې هم سرې شونډې
دغه هسې رنك آفتاب په آسمان نشته

عشق عاشق لره یو هسې گلستان دی
چې باغ وته یې لار د خزان نشته

عاشقان په عشق کښې واړه سلطانان دي
په دا ښهر کښې نیستگار و ناتوان نشته

که مجنون غوندې په عشق کښې څوك صادق شي
دلیلې په دروازه کښې دربان نشته

دانایان به د رحمان په قال پوهېږي
دلته کار د هر نا اهل و نادان نشته

١۴

په دنیا کې مخ د یار دی نورڅه نشته
هرچې دی د یار دیدار دی نور څه نشته

چې و هجر ووصال وته یې نظر کړم
یو دوزخ دی بل ګلزار دی نورڅه نشته

کارخانې چې د دې دهر لېدې کېږي
همګې دعشق سرکار دی نورڅه نشته

هر مژګان یې په ما هسې چارې کاندي
وایم عین ذوالفقار دی نورڅه نشته

بویه مرد چې یې له مخه زلفې واخلي
دغه ګنج دی دغه مار دی نورڅه نشته

د محسن د حسنات صفت به څو کړم
کوتاه وایم چې بې شمار دی نور څه نشته

و هرلور ته چې د زړه په غوږو ځیر شم
جوړ د محبت بازار دی نور څه نشته

چې سپین مخ او تورې زلفې یې لیدې شي
دغه ګنج دی دغه مار دی نور څه نشته

هر طبیب ته چې ځان وښیم دا وایي
چې له عشقه دې آزار دی نور څه نشته

خوار رحمان که بې تا مینه په بل چا که
عین د قتل سزاوار دی نور څه نشته

۱۵

تا خو زده زما د زړه له احتیاجه
نور مې څه پو ښتې چې څه غواړې محتاجه

د طالب او د مطلوب راز به ما دروښود
که ته نه وای خبردار له دې رواجه

یار که یار ته حال په خوله نه وایي څه شو
و حکیم ته پټ څرګند وي له مزاجه

که زما له حاله ما پو ښتې حال دا دی
چې بې تا مې ورځ تیاره ده تر شب داجه

آشنایي به ما په کوم قوت کوله
که خبر وای ستا د هجر له تاراجه

که له سلو به یو خواست د چا قبلیږي
خدای دې هېڅوک رنځور نه کا بې علاجه

په رحمان بلا پسې که زهېرېږي
ته مشغول اوسې له خپله تخت او تاجه

۱۶

چې خبر شوم د ساقی د جام له راحه
لکه مړی ملاقي شوم له ارواحه

زه چې زلفې د یار ووینم په خوب کښې
په شپه مښک راباندې ووري تر صباحه

سبا زیری د وصال په مهجور کاندي
د هیواد خبر مونده شي له سیاحه

که روا کا خون خوردن د عاشقانو
څوك وتی شي د خوبانو له صلاحه

هر ساقي چې جام د عشق لري په لاس کښې
دا پیاله یې په مستانو ده مباحه

مخ بې مینې که څوك ستایي ستایه نشي
د ممدوح له قدره چا زده بې مداحه

د دنیا ناوې په عقد کښې دین غواړې
ای رحمانه ځان یې ژغوره له نکاحه

۱۷

ولې تللې ییې له ما مدام په څه؟
ترهېدلې یې هر صبح و شام په څه؟

زه هر صبح و شام و تا وته دعا کړم
ته و ما وته کوې دشنام په څه؟

همیشه لکه وحشي په وحشت ګرزې
یو ساعت را سره نه یې رام په څه؟

دایماً را څخه درومې مخ په وړاندې
لکه عمر بېرته نه ړدې ګام په څه؟

راته وایه زه به هم هغه کومه
رقیبانو ته بخښې انعام په څه؟

لږ پرهېزکړه له رقیبه د خدای روی دی
ګډ وې سره حلال حرام په څه؟

رحمان ستا په مخ بې څښو هم مین دی
بیهوده دې ورته کېښود دام په څه؟

۱۸

ولې نه ګورې و ما ته سم په څه؟ زياتوې د غمزده و غم په څه؟
ستا په غم کې چې ما وينې عالم ژاړي ژړوې را سره نور عالم په څه؟
په مطلب دې د سرو شونډو نه پوهېږم چې مې وينې د زړه څښې هر دم په څه؟
ستمګار چې ستم کا څه بهانه کا ته په ما باندې کوې ستم په څه؟
مه کړه خدای چې څوك بې ياره خوښ خرم وي زه به اوسم بې تا خوښ خرم په څه؟
و دې خپلو برندو سترګو ته دې وايه چې ور وژني مې قلم قلم په څه؟
لږ يې وپوښته چې حال دې د زړه څه دی د رحمان له سترګو څاڅي نم په څه؟
زه رحمان پخپله ګرم يم چې مين شوم ولې نور عالم مې بولي ګرم په څه؟
١٩
که څه وايم له هجرانه وايم څه؟ له دې درد بې درمانه وايم څه؟
توان د دم وهلو نه لرم و يار ته چې توان نه لرم بې توانه وايم څه؟
چې يې ووينم له ځانه خبر نه يم چې خبر نه يم له ځانه وايم څه؟
د خپل زړه له حاله هېڅ را ويل نه شي له بې نامه بې نښانه وايم څه؟
د عشق راز چې هېڅ نه دی بيان کړی ترو به زه له بې بيانه وايم څه؟
د خپل يار له غمه درست په اوښکو ډوب يم له دې هسې رنګ طوفانه وايم څه؟
زه چه پروت يم د هجران په تناره کښې د وصال له ګلستانه وايم څه؟
سر ومال د سرې لوټ کړي زړه يې يوسي له دې هسې دلستانه وايم څه؟
زاغان بولي بلبلان شړي له باغه د دې دهر له باغبانه وايم څه؟
هر چه وايم ترهمه واړو بهتر دی زه رحمان به له جانانه وايم څه؟
٢٠
څه شوکه خاموش يم ستا د عشق له آه سرده ستا زما له ميني خلقه واړه خبر ده
هېڅوک دي په خوله د عاشقۍ لافه و نه کا کله هم پټېږي وچې شونډې ګونه زرده
اهل د دنيا واړه نامرد دي رنګ يې ورك شه خدای دې ملاقات د هېچا مه کا له نامرده
کله بې دردانو لره زړه د چا وردرومي زه به صدقه کړم سل بې درد تر اهل درده
بې د ستا د عشق د شهيدانو له خاکدانه کله زرغونېږي سره لاله له هره ګرده
يو خوشحال يو کم سل خټک نور په طبيعت ګښې ځار شه د رحمان سړېني له يوه فرده

٢١
که زما مينه په تا ده خطا نه ده که بې تا ده ناروا ده روا نه ده
څوك چې بې د ستا له مخه بل ته ګوري آئينه يې نا صفا ده صفا نه ده
هر عاشق چې پخپل يار پسې ژړا کا دا ژړا واړه خندا ده ژړا نه ده
د دنيا په تماشا چې څوك نازېږي خو هم نن يې تماشا ده سبا نه ده
که ته سل ځله له ما سره جفا کړې ستا جفا واړه وفا ده جفا نه ده
هغه تېر شو چې مې مينه په غلا غلا کړه اوس په درست جهان رسوا ده په غلا نه ده
معشقوقه که د خپل سر په بها مومي و رحمان وته ويړيا ده بها نه ده
٢٢

له اغیار سره خندا څه پکار نه ده    له اغیار سره سودا څه پکار نه ده
سل یاری د یوه یار د پاره کړی شي    آشنایي د هر آشنا څه پکار نه ده
بد له بدو سره بویه نیك له نیکو    د جفا په ځای وفا څه پکار نه ده
هر بلبل به دي ثنا کا که ته گل شي    په خپل ځان خپله ثنا څه پکار نه ده
عشق د ورم پڅېر پټه خوله څرگند وي    په دا چارو کښې غوغا څه پکار نه ده
د عشق درد واړه عاشق لره راحت وي    د دې هسې رنځ دوا څه پکار نه ده
عاشقي حرص او هوا دي سره لري    د بیمار په ځان هوا څه پکار نه ده
عاشقيیو نادره کار دی په جهان گښې    ولې بې خدایه سودا څه پکار نه ده
که گنم هم یې هېڅ نه گنم سوگند دی    بستگي د دې دنیا څه پکار نه ده
د دنیا مینه بې کاره اوریده شي    چې مې ولیده رښتیا څه پکار نه ده
که رحمان په جهان ډېره پایم دلبره    زندگي زما بې تا څه پکار نه ده

۲۴

گوره بیا به څوك ادا کا په زړه غوندې    چې دا هسې مسته درومي مخ بر بندې
ته چې گل د آشنایې له باغه غواړې    خبر زده کړه د هجران له خارو خندې
ما رستم د زمانې ولیده په سترگو    د خپل د یار له جوره ژاړي لکه کوندې
طالبان که مرور دي هم پخلا دي    بې مطلوبه به د چا نه رسي دا هندې
د عاشق د لاغری سبب هم دا دی    چې فرقه د معشوقو شوه په زړه ټندې
زه به حورې د جنت بې یاره څه کړم    خدای دې سروه د چا نه کاندي ارهندې
سخت ساعت د بیلتانه به مې هېر نه شي    که را ډکه شي د تور لحد گورهندې
زه رحمان د هغه حسن دعا گوې یم    چې جرگه د عاشقانو وي پرې پندې

۲۵

ما چې جور و جفا بیا مونده له یاره    د وفا طمع به څه کړم له اغیاره
له دښنه د ښادی طمع څوك څه کا    چط د دوست له لاسه غم شي وردوڅاره
دل آزار که دل آزار شي مانه نه شي    حیف خو دا دی چې دلدار شي دل آزاره
دا گله هم ډېره ډېره له هغو شي    هر چې طمع ترې د ښو کېږي بسیاره
اوس دا ستا رضا جفا کړې که وفا کړې    دواړه لاس مې اوس ختلي له اختیاره
طالبان خو تر مطلوبه پورې پېره دي    خدای دې تا بې وفا نه کا وفاداره
چې له ډېرې حیا نه گورې و چا ته    څه خو مخ کړه د رحمان د زړه دپاره

۲۶

وخت د نو بهار دی زه جدا له خپله یاره    دریغه دریغه چې بې یاره ځي بهاره
اور د خوړو زړونو چې د غره په سربلېږي    شنې لوخړې خیژي له نښتر و له چناره
دا څه عاجزي ده چې زه کښم په کاغذ باندې    راشه وویرېږه د عاشقو له آزاره
دا څه اوښکي نه دي چه بهېږي له چشمانو    وینې دي بهېږي د زړگوټي له پرهاره
رنځ مې هسې سخت دی هر زمان په ما ډېرېږي    راشه اې طبیبه گوندي مرم د رب دپاره
غرونه دي نړېږي چې زما په حال پوهېږي    سیند د اوښکو درومي چې راغلی له کهساره
نور څه نه دي واړه دا نارې د بیلتانه دي    راشه که یې اورې د رباب له هره تاره
زه یو خوار و زار یمه رحمان په عاشقی کښې    خپل دي که پردي دي راته نه گوري له عاره

۲۷

ستا په عشق کښې دروغژن یم سر تر سره
چې له غمه دې ژوندی گرځم دلبره

زه به ستا له غمه کله شو لا مړ وم
بارې دم د خدای په لاس دی ناز پروره

جدايي به مې يو دم قبوله نه کړه
که چا مرگ او بيلتون ايښی وای په غوره

شام سحر مې دغه ستا زلفې رخسار دي
نور مې مه پوښته له شامه له سحره

چې خبر دي په وصال و په هجران شوم
خبر نه يم له فردوسه له سقره

بې د ستا له مخه ورځ راباندې شپه ده
روښنايي د ورځې چېرې وي بې نمره

هسې بې سر و سامان دې هېڅوک نه شي
لکه زه چې بې سامانه يم بې سره

يو هنر مې منظور ستا په نظر نه دی
که زه وکړم ستا په عشق کښې سل هنره

هېڅ اثر د رحمان اوښکې په يار نه کا
خدای دې اوښکې د چا نه کا بې اثره

۲۸

زه عار نه لرم په عشق کې له پيغوره
بې پروا يم د ستی په څېر له اوره

ږدي په خوله د سمندر مهر د مومو
چې څوك ما منع کوي د عشق له شوره

بې هجرانه زما بله خواري نشته
ولې نشته تر دا بله خواري نوره

لکه ته چې خدای هر گوره ښائسته کړې
زه يې هم هسې بې صبرۍ کړم هرگوره

چې په تور و سپين مې اړوي دا څوك دی
که ته نه يې په مخ سپينه په زړه توره

د رقيب له بده خويه به څه وايم
لا چې يار ور سره مل شي هاله گوره

چې يې پور د مرگ تر پوره لا بتر دی
هی توبه د بيلتانه له بده پوره

دا مط خپل نصيب طالع دی رارسېږی
گڼه غم کله رسيږي له غم خوره

قاف تر قافه بادشاهي به يې روزې شي
چه په چا وشي دا ستا د زلفو سيوره

عاشقي سړی مجنون کاندي رحمانه
گڼه څوك په هو ښيارۍ وزي له کوره

۲۹

نه رسيږ ي ستا و حسن وته حوره
څه به رسي و ميرمن وته مزدوره

ستا تر قده تر قامته نه رسيږي
که نښتر که سپاري وي که کجوره

تر قامت پورې دې سرو ده سر کوزې
تر رخسار پورې دې شمعه ده بې نوره

هر سړی چې دې و حسن ته نظر کا
ښاپيرۍ يې په نظر وي نا منظوره

چې تا می د خپلو شونډو ور په خوله کړ
طايفه دې د صوفيانو کړه مخموره

اوس ته وايه چې په څه رنگ دې وستايم
زه خو ستا په مينه لاړم له شعوره

دا جذبه د عاشقۍ نه ده نور څه ده
گڼه کله څوك وتی شي له دستوره

اوس به زه د شب خيزۍ څه منت وکړم
چې څېره دې کړه په خوب کښې را حضوره

چې په ننگ و په ناموس تر لوره کم وي
خدای دې مور کا په دا هسې زويه بوره

که سل ځله زويه غوره وي تر لوره
صدقه شه نا قابله زوی تر لوره

ننگيالي تربرونه ښه دي او که نه وي
ننگيالی ترله هم ښه ده له تربوره

خوبرويي بې دلبرۍ څه په کار نه ده
لکه ونه بې ميوې په پاڼو گوره

که د غلوزې لباس وکا غزا وشوه
شهد نه دي چا مونډلي بې زنبوره

په رحمان د ښايسته ؤ قدر ډېر دی
د طبيب له قدره چا زده بې رنځوره

۳۰

ستا په عشق کښې هسې خلاص یم له شعوره چه یوه خبره نه لرم منظوره
طبیبان وایی چه صبر دي دارو دی خدای زمونږ فرقه پیدا کړه نا صبوره
توري هر چرې ترلې په د شمن شي یاره ستا سترګې دوستان وژني په توره
معشوقې د زماني شوې سره ټولې د زړه خونه مي ئي ولوټله چوره
زه تنها په ضرور نه یم ستا له غمه پیدا شوې عاشقي ده له ضروره
هرې شپې لره ورځ شته ده په دنیا کښې زما عمر جدایي کړ بې له نوره
مهرویان وفا له هېچا سره نه کا دا خبره په عالم کښې ده مشهوره
له حیرته واړه ګوتې په غاښ نیسي په هجران کی خبر مه شې له مهجوره
د رقیب له بدو سترګو دې ځان ژغوري هر عاشق چې بهره مند وي له حضوره
هومره توان و توفیق نه ګنم په بخت کښې چه تائب کا ما له فسق و فجوره
په نظر د مدعیانو تور کودی وي که یي کښېنوم د کټ د پاسه حوره
د رحمان د سترګو نم به هاله وچ شي که وچ شوی د چا نم وي له ناسوره

٣١

چې په وقت د ځنکندن وکاږې ږیره ترو ولې هس ناست یې بې تدبیره
هر سړی چې کان د غم په مخ کښې ویني له هغه غمه لا نن ګرزي دلګیره
چې سبا ارمانوې پند د پیرانو ولې نن د پیر طلب نه کړې بې پیره
د یار یاد به دي ځای څه رنګ په زړه نیسي یاد د غیر چه لري نه کړې له ضمیره
چه د ټوك په طلب ګرزې خدای دي هیر دی فقیري دا هسي چیري وي فقیره
دغه غم دې خدای بدل کا په ښادئ زهېر مه شې په آشنا پسې زهیره
هرسړی د هغه مخ په رڼا ګرزي چې یې خونه د خاطر وي پرې منیره
همیشه پراته په اور و په اوبو وي عاشقان د لعلو لبو له تاثیره
که هر څو ښایسته ډېر دي په جهان کښې و هر چا ته خپل آشنا دی بې نظیره
زه رحمان د آزادئ په طلب ګرزم باری نه د تورو زلفو له زنځیره

٣٢

زړه مدام راته ویل چې ژاړه ژاړه په ژړا سره دا تللی اشنا غواړه
مسلې د بې ننګئ ورپسې لنګ کړه بیچاونی د ننګ کشېرده وه یې نغاړه
که د یار په سر لویې دا ستا رضا وي په خندا خندا راځه په لکه غاړه
دا فلک چې د آسیا په دود ګردش که په دنیا کي به پرې نږدي دانه لواړه
په دنیا کي ګوره چې زنده سر دی د اجل په تیغ به پرې که د دوی غاړه
د مکې ځنځیر حاجیان په لاس کي نیسي رحمان ونیوې د یار زلفینې واړه

٣٣

یوه هسې بې سوزي مې شوه په برخه چې سردي یې لا بتره ده تر ساړه
مصلي د بې ننګی ورپسې لنګ کړه د هوس مصلي قط کړه ویې نغاړه
یار زما د سترګو تور پرې ګرزېدلم په هجران کېږ مي د سترګو رڼا لاړه
په خوار مونده نه شي له سګانو په لوخ سر سره دروزي له بګاړه

٣٤

گاه په غارمه سوزي کله ریږدې په ساړه
کله مرې له لوږې کله مرې په ډېر خواړه

واړه په غوغا دي چې راغلي په دنیا دي
نه يې هغه وږي په قرار دي نه ماړه

کله لاس په سر و بل ته کيږدي تواضع کړي
کله وبله کيږدي لاس په توره په چاړه

خاورې د آدم چې کړې خمير فرشتګانو
درست يې په غمونو په دردونو ولاړه

څه شو که څوك نن ساعت وهل کا يا تړل کا
پيښ به په هغه شي چې واهه شي هم تاړه

څو به وي تندرسته دا زموږه بنا سُسته
زه يې درمانده يم په پشتۍ په اخاړه

ښايي که څوك پس له مرګه خاندي په لحد کښې
هر چا چې په دا ژوندون کښې خپلسر وژاړه

وينم واړه تلوني هيڅوك نه دې پاتې شوني
يون دی په دا لاري هم د ځوان هم د زاړه

زلفي د دلدار دي چې هر څوك يې طلبګار دی
لوې دی که هلك دی که غټان دي که واړه

سخ د هغه چا دی چې په در کښې يې قبول شي
زار د هغه چا چې يې له دره وشاړه

ما عبدالرحمن غوندې جواب سلام کړ ورته سلو
خدای خبر چې کوم يو هغې ترکې ویلاړه!

۳۵

خود به وران شي د دنيا بازاره ناړه
هرنفس د بيلتانه په تاخت لتاړه

لا غنچې په باغ کښې سترګې سپيږدې نه وې
باد خزان يې د زړه مېنه کړه ويجاړه

هسې باد پرې د فنا له لوريه والوت
د لاله خوله يې پرې يسته لناړه

څه بزرګي به يې د بازاو د همای وي
زباني ذکر که سل رنګ کا خراړه

که سل زر کاله پرې تېر شي په اوبو کښې
په نرمۍ به نرمه نه شي وچه تراړه

تر دا هسې عمره نه عمر بهتر دی
هر چې حال يې خنکدن شي عمر واړه

تر خلاصي ځنې بندي ښه يې رحمانه
چه د يار د زلفو هار دې شي په غاړه

۳۶

چې غرقاب شي تور مژګان په يم د زړه
نور خراب شي خان ومان په غم د زړه

عبث وايي غم د زړه و بوالهوس ته
څه پوهيږي هلکان په غم د زړه

په بل مخ باندي سوا د يار له مخه
ما تړلي دي چشمان محکم د زړه

چې يې عرش او کرسي لاندې تر قدم دي
بالا تر دې هسې شان قدم د زړه

د خليل تر کعبې دا کعبه ده لويه
که آباد کا څوك ويران حرم د زړه

که نور خلق قدمونه ږدي په زمکه
ما دی ايښی په آسمان قدم د زړه

دا مکان چې د اسمان زمکي تر ميان دی
يو خلوت دی د امکان سلم د زړه

زه ملهم د زړه له چا غواړم بې ربه
چې کړی نه شي طبيبان مرهم د زړه

صورتي همدمان ډېر دي په دنيا کښې
ولې نه مومي رحمان همدم د زړه

۳۷

ساقي پورته شه د ميو جام تيار کړه
عمر هېڅ معطلي نه لري تلوار کړه

هر دم تيغ دا ستا زما په مرۍ ګرزي
هر نفس د خپل نفس له تيغه ډار کړه

تر خودۍ پورته بله بلا نشته
ښاد مې د بيخودانو په دربار کړه

دا پنځه ورځې ژوندون چې غنيمت دی
شکرانه په دا نعمت د کردګار کړه

که غمخوار غواړې په غم و په اندوه کښې
ښيينه ډکه د شرابو اختيار کړه

څودط دوه سترګې غرېږي په جهان کښې
ننداره په هر ساعت د خپل نګار کړه

هغه څوك دی چې تهمت پرې وايه نشي
غوږ په هېچا باندې مه باسه خپل کار کړه

مدعي چې په خوله ورشي هغه وايي
ګوش و هوش د محبانو په ګفتار کړه

بې وفا دي د دې دهر ياران واړه
چه دې پس له مرګه يار شي هغه يار کړه

رحمان وايي د دنيا چارې فاني دي
البته په دا خبره اعتبار کړه

۳۸

چې مې مينه خدای په تا باندې پيدا کړه
ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا کړه

اوس د ستا رضا جفا کړې که وفا کړې
ما د ستا جفا قبوله په وفا کړه

گل په لعلو و په گوهر کله څوك پېرې
بې له ما چې تا خندا کړه ما ژړا کړه

بې له ما چې دا ستا غم په هوس پېرم
کوم وگړي په هوس د غم سودا کړه

دوه ياران به دا رنگ نه وي چا ليدلي
چې يوه ورته ښکنځل کړه بل دعا کړه

ما و درست جهان ته شا و تا ته مخ کړ
تا و درست جهان ته مخ او ما ته شا کړه

ډير هندکي په جهان گرځي د چا ياد دي
عشق عالي پايه د هيرا و د رانجا کړه

هم په دا يې تر همه وو نام بلند شه
چې قبوله عندليب د گل جفا کړه

نا آشنا د بېلتانه له غمه څه زده
خدای دغه خواري په برخه د آشنا کړه

عاشقان د يار تر سپيو هم ځاربږي
گنه ما د رقيبانو څه پروا کړه

زه رحمان چې ستا د حسن ثنا خوان شوم
ستا له رويه درست جهان زما ثنا کړه

۳۹

باړه وتړه هاله کښت و زراعت کړه
تقوی دار شه هاله طمع د جنت کړه

عاقلان په وړاندې ځي په ورسته گوري
په دنيا کښي سر انجام د آخرت کړه

سم د لاسه کار هر گوره ډېر مشکل دی
څو لا نه يې غريب زيرمه د غربت کړه

چط نور خلق ملامت در باندې وايي
لا پخوا تر خلقو خپل ځان ملامت کړه

چې عقبا ته د دنيا په اجر مومې
خو هم دا عمارت هلته عمارت کړه

څو به گورې د قيامت و ورځو شپو ته
خو هم دا جهان په ځان باندې قيامت کړه

چې نيکي بدي په تله کښې تلل شي
خود پخپله تله واخله عدالت کړه

که لښکر د حرص هوا درباندې زور شي
سر دننه په قلعه د قناعت کړه

دا به نشي چې ستا څښت او د حق مخ وي
که حق غواړې ته هم مخ په حقيقت کړه

هغه زړه چې عرش الله دی گوره کوم دی
څو دې توان شي د جمله زړونو خدمت کړه

وړانديني هم واړه ستا په څېر سړي و
ته هم پاڅه د هغو په څېر همت کړه

د دنيا چارې همه واړه فاني دي
بارې پورته شه يو بل رنگه حکمت کړه

په طبيب د عاشقانو دارو نه شي
درومه بله خوا دارو د خپل زحمت کړه

څو دې حق مونډلی نه دی مه جار وزه
په دا مرسته دا جهان واړه لت پت کړه

اې رحمانه اول ته نصيحت واخله
دغه پسه بيا و بل ته نصيحت کړه

۴۰

هسې زه يم ياره ستا په غم تازه
لکه وي هره گياه په نم تازه

سترگې وخورم که يې وچې کړم له نمه
که مې کېږي په دا ژړا صنم تازه

زه به څه کړم د چا چارې بې له ياره
هر سړی دی په خپل ساه په دم تازه

د يار نوی نوی غم زېږوي وصل
رغوي سوی پرهر مرهم تازه

که دې زړه له غمه وچوي دلگير مه شه
کاتبان کا په چول قلم تازه

ښايسته ياران گلونه دې رحمانه
بېلتانه کړه اکثر مړاوي کم تازه

۴۱

نه يم خوښ د سرو گلونو په سايه زه
په اور سوی ښهر وران وي څه حکمت دی

خپلوم به دي په هر رنگ چه خپلیږ ي
نن راغلي په جهان يو كه ديدن كړې
دا اوږدې وعدې چې ته كوې صنمه
چې له ډېرې حيا نه گورې و چا ته
چې له غمه له اندوهه دې مړ نه يم
كه جوړه تلاى څوك و قبرو ته دريغه
هميشه د خپلو اوښكو له سيلابه
كه څوك قياس زما د ډيرو اوښكو وكا
زه رحمان د يار ثنا كولى نه شم

خوښ يم ستا د مخ په اور باندې جليا زه
سوي ستا د مخ په اور يمه بسيا زه
كه دې مومم په دروغ كه په رښتيا زه
نه به ته په دنيا راشې نه به بيا زه
كاشكى بيا مومم فرصت په دا دنيا زه
غوڅ كړم غوڅ كړم دې ستا ډېرې حيا زه
سنگ آهن يم آدم نه يم گويا زه
ژاړم دا چې يا به ته يې او يا زه
سرگردان يم تر فلكه تر آسيا زه
هسې گرځم لكه خس پاس په دريا زه
۴۳

په دوران مې هسې رنگ دلبر پيدا شه
يا طالع د زماني يا زما بخت دى
چه قاصد د ورك يوسف زيرى پرې وكړو
عشق دى دا كه يو فساد دى نه پوهيږم
دريغه نخل د عشق مه واى زرغون شوى
ملائك د عشق له غمه څه خبر دي
يو د تركو بې نيازي بل عاشقى شوه
بيا به روغ د عاشقۍ له رنځه نه شي
د نا اهل زوى پلار به څه ښادي كا
چې هنر عيب كوي عيب هنر كا
۴۴

كاشكې دا چې په جهان نه واى گويا زه
۴۲
اي زما د زړه آرامه راشه راشه
چه همه واړه خوبان دي مقتديان دي
بې تا نشته هيڅ حرمت د عاشقانو
خداى زده بيا به هسى وقت وي او كه نه وي
نن هنگام دى كه وفا كړې كه جفا كړې
دا جهان د مسافرو يو رباط دى
پري رويه سنبل مويه ملك خويه
شپه لا پريږده رڼا ورځ را باندې شپه شوه

سرو قده گل اندامه راشه راشه
د همه واړو امامه راشه راشه
د مشتاقو احترامه راشه راشه
زه ويريږم له ايامه راشه راشه
چارې نه شي بې هنگامه راشه راشه
تله دي تله دي له دې گرامه راشه راشه
عنبر بويه لاله فامه راشه راشه
د رحمان ماه تمامه راشه راشه

گويا بل د نمر د پاسه نمر پيدا شه
چه دا هسې رنگ شيرين بشر پيدا شه
د يعقوب د ستركو بيا نظر پيدا شه
په جهان كې چې دا شور و شر پيدا شه
چې له ښاخه يې د غم ثمر پيدا شه
خو هم ما لره دا سخت سفر پيدا شه
په پرهر باندې مي بل پرهر پيدا شه
په هر تن كښ چې د غم اثر پيدا شه
چې له پشته يې لئيم پسر پيدا شه
د رحمان په دور دا هنر پيدا شه

چې نصيب ئي سينه چاكه زړه افگار شه
چې ندا د عاشقۍ په عاشق وشوه

عبادت د ریا کار څه پکار نه دی
د غفلت له خوبه پاڅېده بیدار شه
د جاهل زهد په زهد حساب نه دی
لکه غوك هسې په بحر هسې مردار شه
مشقت د نادانانو واړه پوچ دی
لکه مال په خمرو خرڅ د خمر خوار شه
علمیت د بې عملو عالمانو
لکه بې بارانه ابر تش غبار شه
چې یې کاندې و نا اهل و نا قابل ته
لکه گنج د کتابونو په خره بار شه
د رحمان کلام په غوږ د بې هنرو
نصیحت د ناصحانو څه په کار شه
جرس ځکه په فریاد و په چغار شه
لکه در په لاس د طفل هسې خوار شه

۴۵

په دنیا کښې له دنیا گوښه کنار شه
سمندر غوندې په اور کښې گلعذار شه
پس له مرگه که ژوند غواړې سر گیاه کړه
په پریکړې سر بیا نوی مرغزار شه
دا ترخې اوبه به څه کوې د بحر
خود پخپله د گوهر په څېر آبدار شه
بې له خدایه نور د هېچا منت مه کړه
په وچ کانې باندې ونه د کهسار شه
که د ونې په څېر گل و میوه غواړې
ځان په نمر کړه سایبان د هر خاکسار شه
دست په دست که د خپل کار په درستول یې
لا تر ځان ړومبی ولاړ د بل په کار شه
که دې ویره شي له خپلې در ماندگۍ
د درماندو دستگیري کړه خبر دار شه
که هوا دې د جنت په خاطر گرځې
خاك نشین په آستانه د هغه یار شه
که په توره تارکۍ کښې رڼا غواړې
نندارچي د یارد زلفو د رخسار شه
که پکار دې د سرو شونډو شیریني وي
د خپل ځان په وینو سور لکه انار شه
که راضي یې چې دې باغ شي د زړه سبز
په ژړا لکه باران د نوبهار شه
د رحمان په عاشقۍ کښې سترگې وشوې
چې څوك وایي عاشق ړوند دی هغه خوار شه

۴۶

بیا مې زړه د تورو زلفو مسخر شه
چپ و راست مې د حبشو تور لښکر شه
هر طرف مې د دعا غشي گذار کړل
ولې یو هم هسې نه ؤ چې کارگر شه
و هر لور ته چې غوږ باسمه غوغا ده
یا نارې د بېلتانه دي یا محشر شه
واعظان خو وعظ کاندي بارې څه کا
چې د عشق په لیونیو یې گذر شه
چې پدر غوندي یې ما ته نصیحت کړو
په دیدن د ستا هغه زما پسر شه
ستا په درکې چې پراته دي نیکبختان دي
چې د ستا له دره ووت در په در شه
د عشق زخم به څوك څه گنډي رحمانه
چې گنډ ون یې په پرهر باندې پرهر شه

۴۷

هېڅ مې نه زده نه پوهېږم دا څه پېر شه
چې دلدار مې د اغیار په شکل و څېر شه
زمانه مې د رقیب له لاسه وژني
چې مې سپې گانه هغه را باندې شېر شه
د هجران غمونو هسې په عذاب کړم
هغه عیب چې مط لږ گانه اوس ډېر شه
چې په تیغ مې لوبې کړې سزا مې دا وه
ښه چې غوځ مې زړه د ترکو په شمشېر شه
تېر ساعت به د هیچا په لاس کښېنوزي
اوس به څه وایم و چا وته چې تېر شه
چې مې نوشه د هجران پیاله کړه تلخه
د وصال دولت مې کل زهر و گنډهېر شه
چې یې نه په وفا یاد نه په جفا وي
څه که رحمان د هغه یار له دله هېر شه

۴۸

پاڅه یو ځله سیراب د عشق په جام شه
په ساغر د ماه و مهر می آشام شه

له اوله بندگي بیا آزادي ده
که مقصود د آزادئ لرې غلام شه

د صیاد له وحشتونو خپلسر خلاص کړه
لکه مرغ خانګي پخپله رام شه

ژوندی ځان په زمکه خښ کړه لکه تخم
که لویي غواړې د خاورو په مقام شه

درست جهان د کمینی په خوي وخوره
لکه زمکه هسي لاندي تر اقدام شه

په نیستئ کښي د هستئ مرتبه گوره
نندارچي په ویرانه کښي د خپل بام شه

و دښمن وته‌پخپله عیب مه وایه
ځان پخوا تر مرگه ووژنه مدام شه

په مستانو کښي د عقل ښښتن غل دی
که په نورو خلقو خاص یې دلته عام شه

اې رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه
دغه پسه په صفت د گل اندام شه

۴۹

د دنیا د سود دپاره غمگین مه شه
غم د دین و د ایمان کړه بې دین مه شه

هر گره، گره کشای لري کم بخته
نا امید له خدایه غوټه جبین مه شه

ډیر خفت دی دارنده چه دانه چین شي
څو دي آب و دانه شته دانه چین مه شه

هر مرغه چه د بل غوښي خوري مردار دی
ځان حلال که لکه زانه شاهین مه شه

د ذرې په څیر آفتاب په طلب خپل کړه
لکه تیره هسي پروت په زمین مه شه

کار په تش لستوني نه کیږي بې لاسه
لاس په ږیره کړه بې لاسه آستین مه شه

عاشقي او خود بیني دي سره لري
که مطلب دي عاشقي وي خودبین مه شه

په خپل کور کښي دي سفر دی که پوهیږې
مسافر د هندوستان و د چین مه شه

خپل تابوت درته ولاړ زین کړی آس دی
ته په زیرمه د بل آس و د زین مه شه

چې تقوی دیانت نه لري رحمانه
د دې هسې همنشین همنشین مه شه

۵۰

په امید د گانده ورځ زړه ور مه شه
نسیه نقد ښبله بیل کړه اوتر مه شه

په امید امید یې خلق نا امید کړه
د فلك له رهزنی بې خبر مه شه

د دنیا بادشاهان خواست کړي له فقیره
ته بادشاه د هسې ملك شه خواستگر مه شه

د همای پڅیر طعمه کړه وچ هډوکي
لکه مچ طالب د شهد و شکر مه شه

ځان صدف غوندې و خاورو ته کړه ښبرمه
لکه ځګ هسې د بحر په سر مه شه

ډیر عزیز دي موم دلان تر سنگدلانو
ته یو ښاڅکی شه د اوښکو گوهر مه شه

حیوانات هم په تسبیح د خدای مشغول دي
ته انسان یې له حیوانه بتر مه شه

نفس شیطان سرې و کفر ته وباسي
رحم فهم په ځان وکړه کافر مه شه

ټپ ړانده وي عاشقان د یارله عیبه
ته ټپ ړوند د هغه یار په هنر مه شه

دغه ځای د بیدلانو دی رحمانه
د دلبرو په کوڅه دلاور مه شه

۵۱

چې له سترګو مې خوناب د زړه عیان شه
له نظره مې هر سنګ در و مرجان شه
خراب زړه چې مې ژړل د یار له غمه
بیا په اجر د هغې ژړا خندان شه
کمینیو له جمله آفته خلاص کړم
لکه خاوري د دښمنو په چشمان شه
د غصې زهر یې شهد شول په صبر
د خلیل پخېر آتش پرې ګلسان شه
عشق یو داد دي په عاشق باندې له خدایه
هسې نه چې و هر چا وته عیان شه
چې د یار زلفې رخسار مې په زړه نقش شو
خپل خلوت مې خراسان و هندوستان شه
د رنځورعلاج ترخه ترخه دارو وي
دغه درد دی چې هم درد وهم درمان شه
چې دا ستا د خولو بوی ور باندط راغی
د عطار په مخ د اوښکو رود روان شه
علامت د استغنا به یې څرګند وي
هغه څوك چې تېر تر ځان و تر جهان شه
عشق د یار په رانه وچولې ولجه دی
خو چې وچولی یې غوټه کړ تاوان شه
د ګریبان په چاکول یې څه لارغه وي
چې ځیګر یې ورومبی چاك تر ګریبان شه
عشق د یار په رانه وچولې ولجه دی
خو چې وچولی یې غوټه کړ تاوان شه
نادانان به د دنیا غمونه کاندي
مرد هغه دی چې په زیرمه د خپل ځان شه
نشانه د نادانۍ به نوره څه وي
چې سړی په خپل کردار باندې پښیمان شه
انسانیت څه په دولت نه دی رحمانه
بت که جوړ شه د سرو زرو نه انسان شه

۵۲

که په عقل پسې لاړم پکار نه شه
که له بخته مې یاري غوښته یار نه شه
غرونه غرونه خوب په ښاخکي اوبو درومي
یار په سیند زما د اوښکو بیدار نه شه
معلومېږي چې کم بخت د درست جهان یم
چې د درست جهان دلدار مې دلدار نه شه
ما غندي او رقیب ستایي طالع ګوره
چط سړی ورته د سپي په مقدار نه شه
که یې سل ځله اقرار را سره وکړ!
دا زما نا قرار زړه په قرار نه شه
ډېر غمونه دي چې یې وخورمه پخپله
په دنیا کښې مې بل هیڅوك غمخوار نه شه
که مې سل نصیحتونه ورته وکړه
هغه خدای بې لارې کړی په لار نه شه
سهل کار دی که رحمان په زړه آزار شوم
چې خاطر د هغې مستې آزار نه شه

۵۳

هر ساعت چې مې ګذران دی بې مخلصه
هزار بار ارمان ارمان دی بې مخلصه
که څوك وایي چې له ځانه شیرین نشته
ولې ما ته ځان تاوان دی بې مخلصه
لکه شمع په ورځ مرم و د شپې سوزم
تمام عمر مې نقصان دی بې مخلصه
په بلبل کله بهار کله خزان وي
په ما کل واړه خزان دی بې مخلصه
که شبنم همیش د نور را باندې اوري
په ما کاڼي د آسمان دی بې مخلصه
ډېر غمونه د هجران را باندې تېر دي
اوس یو دم را باندې ګران دی بې مخلصه
د آشنا د مینې اور و ما ته ګل دی
ګل د اور په دود سوزان دی بې مخلصه
په وصال کښې مې نه مرګ لیده نه تبه
اوس مې مرګ په هر زمان دی مخلصه
زه حیران د هغو خلقو په روزګار یم
چې ژوندون ورته آسان دی بې مخلصه
د رحمان د زړه دمه په هېڅا نه شي
مسافر غوندې حیران دی بې مخلصه

چې ښکاره شو راته راز د یار له پطه
پریشان شوم په زړه حیران له دې نمطه
څوک به څه د وفا طمع کا له ښکلیو
چې د طمع لفظ خالي دی له نقطه
په کشتی د عاشق به پل کښیښږدم
که شم دا ځله خارج د غم له شطه
پرې کړه سر چې شي منصور و هر اشیا ته
تېره والی د قلم راځي له قطه
بیابه څو زړونه محبوبه په منګول وړي
هسي راغله لکه تکه سپینه بطه
د یار غم به دې هاله په زړه مېشته شي
که دې غیر غمونه شي له دله حطه
نن کاغذ راته د یار رویبار راوړی
ګوره څه به شي معلوم له دغه خطه
چې مي قد د یار دراز او نه کوتاه دی
رحمان واخسته په لاس ځکه اوسطه

## ۵۵

د هغو چې په هجران شي سینه داغه
نور یې څه دي له ارامه له فراغه
دغه ځای دی د بلبلو د توتیانو
د چمن له ګلو ببرته اوسه زاغه
په شمام یې سر تر پایه معطر شوم
نن د باز د زلفو بوی راغی له باغه
تر قیامته به مخمور بې خوده اوسم
که یو ګوټ راکا ساقي له دې ایاغه
زه به ستا په در کې عمر واړه تېر کړم
د مجنون مې تل روزګار کېده له راغه
ستا په نور به زه رحمان صورت ستي کړم
که یې وینم یوځل جبین چراغه

## ۵۶

ما به ولي کړو فریاد او فغان درېغه
که آشنا وای راسره جاویدان درېغه
له فراقه مخ د زړه په وینو وینځم
کاشکي نه وای مرګ بیلتون په جهان درېغه
فرزانه بلبل په وخت د بهار ژاړي
چې آخر به باندې راشي خزان درېغه
زه حیران ورته ولاړ په ستر ګو وینم
چې دایم راځني درومي یاران درېغه
یو ذره مې په طاعت کښي تېره نه کړه
ګران بها عمر مې لاړ رایګان درېغه
سرکښي کې تېر تر حده بېچاره یم
که قوت د طاعت راکړو رحمان درېغه

## ۵۷

که یوځل مې هغه یار ولیدی درېغه
سرفراز مې سرګردان ولیدی درېغه
چې تمام جهان په عقل غلبېل کړمه
رېز مرېزه مې پیکان ولیدی درېغه
د وجود ګلزار یې درست سره اغزی شو
خارستان مې باغستان ولیدی درېغه
روغ صورت لکه بادشاه صحت یې تخت دی
ناست په تخت مې شاجهان ولیدی درېغه
د تن ښهر یې خرابه خرابي شوه
بیا مې دا خراب ودان ولیدی درېغه
لکه زه چې له مخلوقه ګرېزان یم
خلګ مې هسې ګرېزان ولیدی درېغه
دا سبق راته تعلیم شکستګي کړه
چې روغ کار مې شکستګان ولیدی درېغه
سخت ساعت ځمکه آسمان راته یکسان کړه
فرق دځمکې د آسمان ولیدی درېغه
و دې خپلې حیرانۍ وته حیران یم
چې حیران صورت شادان ولیدی درېغه
د قرآن او د حدیث په کتو خوښ شوی
بیا په لاس حدیث قرآن ولیدی درېغه
چې زما رحمت پېغور ګڼي و ماته
ما هغه د ځان په شان ولیدی درېغه
خپل یاران مې له زحمته په ژړا دي
ما دغه یاران خندان ولیدی درېغه
د آشنا زلفې مې ولیدې په لاس کې
بند په لار د هندوستان ولیدی درېغه
صبح و شام مې ګدایي د یار د در کړی
په دا کار مې ځان مهمان ولیدی درېغه
درخانۍ او آدم خان په ارمان لاړل
لرې ما له زړه ارمان ولیدی درېغه
مخامخ مې ګفتګوې له یاره سره کړای
د یار ما دغه احسان ولیدی درېغه
چې خطا دې واړه عفو کړې رحمانه
یار مې هسې مهربان ولیدی درېغه

۵۸

ته ناحق له ما کینه کړې کینه ناکه
په کینه به آئینه نه کړې ته پاکه

ځوك بې وجهې چا ته توره تېره اخلې؟
خپل عمل دی چې دنیا یې کړه هلاکه

چې خندا یې د بلبل په آه سرد کړه
خدای د ګل ګریوان پاره کړ سینه چاکه

ځکه سپینې شوې اول د حباب سترګې
چې له بغضه په دریاب چوی تڼاکه

که تن زمکه کړې زړه تخم باران اوښکې
لکه نخل سر به وکاږې له خاکه

بالا دست به شې هاله په نورو ونو
که تعلیم د زیر دستی واخلې له تاکه

بیا به نه مومې د ترکو واك و حکم
څو ونه ووزې درست جهان له واکه

د هغه جهان ژوندون به هاله مومې
چې لاس وکاږې د دې جهان له ژواکه

ته چې ژغورې سر و مال په عاشقې کښې
عاشقي دا هسې چېرې وي کاواکه

چې دا هسې لوې میلمه و کور ته بیایې
اول غولی پاکیزه کړه له خاشاکه

په دویی کښې به ور نه شي تر توحیده
څو ضمیر دې خالي نه شي له اشراکه

دا همه واړه حجاب دی چه لیده شي!
نور دې حسن بالا تر دی له ادراکه

په ظاهر لباس غلط د سړي مه شه
منځ یې ګوره له چغزي اوله متاکه

اولیأ په جهان ځکه څرګند نه دي
چې پاك ژوی خپلسر نغاړي له ناپاکه

هېڅ وفا یې له هېچا سره و نه کړه
ترو رحمان به څه مانه کړي له افلاکه

۵۹

هسې نه چې زما یار واړه جفا که
صد چندان لکه جفا هومره وفا که

لکه زه چې په خپل یار باندې مین یم
یو په سله هومره مینه یار په ما که

زړه یې وړی په احسان دی نه په جور
مجنون ځکه په لیلی پسې ژړا که

درست جهان د خوبرویانو ناز بردار دی
نه یوازې دغه ناز په ما او تا که

مشکل نه ګوري رحمان و هغه مخ ته
چې فرښتې یې هم د حسن تماشا که

۶۰

چې خیمه ئې د سیلاب په مخ شوه لکه
د حباب تماشا ګوره تر دمکه

هېڅ ویسا نه ده پکار د پاڼ په سیوري
**که ترې‌لاندې وي داوسپنو کودیکه**

دا د لاندې به همه واړه چیت پیت شي
مګر سر وي چا وکښلی تر فلکه

چې په اصل خدای نسکور وي پیدا کړی
څوك به څه خوري د دې دهر له ښانکه

چې دښمن یې وي له دوسته اړولی
د هغو احتیاط بویه له کومکه

راشه واچوه د نفس و خولې ته خاورې
څو دې نه ده خوله د ګور په خاورو ډکه

هر چې ډکه یې د ګور په خاورو خوله شي
په هغو به وي حرامه نوره څکه

که نور څوك مبارکي کا وبله نورې
و رحمان ته دې خپل یار وي مبارکه

۶۱

گيده وتړه په پړي سره کلکه | د روټۍ طمع و مه کړه له فلکه
هر سائل چې سوال د نان کړي له آسمانه | گويا غواړي په کچکول کښې اوړمکه
له آسمانه چه څوك طمع د وفا کا | دغه طمع ئې طاعون گڼه بې شکه
له بارانه سره هسې بڼلۍ ووري | چې هر زخم يې بد تر وي تر ټوپکه
که په چا يې شفقت و مرحمت شي | ظلم څور به يې بدتر وي تر اوزبکه
موږ به نه شيهېڅ سړی بې قناعته | که يې خونه وي په سيم و په زر ډکه
بيا به نه مومې کمال بې کمينۍ | که خيمه دي وي د عرش د پاسه لکه
که جهان په نور عالم باندې فراخ دی | په تنگ چشم باندې تنگ شي تر څپکه
د دې دهر په يارانو کښې آب نشته | که يې غواړې تر سما و تر سمکه
ترخې اوښکې د عاشق آب و نمك دي | خدای دي نه کا څوك بې آب و بې نمکه
دا درازې انديښنې مه کړه رحمانه | د دنيا چارې په تله دي تر دمکه

۶۲

که په هجر کښې څوك ما پوښتې له حاله | حال خو دا دی چه ناتوان يم بې مجاله
زه د يار په ديدن ځکه شتابي کړم | چې د عمر بقا نه وينم تر کاله
چې تر حسنه تر جماله يې ځار نه شوم | شرمنده يم د خوبانو تر جماله
ته و ما ته نصيحت مه کړه ناصحه | عشق بې نياز دی له ثوابه له وباله
بې د خپل آشنا د حسن له تعريفه | هېڅ مې مه پوښته له نوره قيل و قاله
ما د عشق په درس کښې نور څه لوستي نه دي | بې له زلفو بې له خطه بې له خاله
په دنيا په آخرت مې دې خدای نه کا | بې نصيب د مهرويانو له وصاله
که يار سر په ديدن غواړي مه جار وزه | دغه حکم رحمان کړی دی دلاله

۶۳

څو تر مينځه ورانه نه کړې د تن پوله | و به نه رسې تر خدايه تر رسوله
خدای و تا ته دين دنيا په غوره کېښوه | تا دنيا کړه په دا دواړو کښې قبوله
تر حرص پورته بله بلا نشته | دا بلا د ستا په خونه شوه نزوله
يو ساعت د خدای په ذکر مشغول نه شوې | تمام عمر د خپل ځان په غم مشغوله
چې باقي زندگاني په فنا پلورې | ځان په کوم دانش دانا بولې مجهوله
له خالقه روگردان شوې و مخلوق ته | بيا و ځان ته عاقل وايې نا معقوله
نصيحت لکه هلك در باندې تريخ دی | د دنيا په شيرينۍ پسې ملوله
چې رحمان غوندې خورسند نه شې په نول کښې | خلاص به نه شې په هېڅ رنگ د زړه له نوله

۶۴

خبر نه يم چې يې راوستم له کومه | بيا مې کومې خوا ته استوي چې درومه
لکه ږوند چه لاس د بل په اوږه کيږدي | هېڅ ژوره لوړه نه وي ور معلومه
خدای را پېښه نرۍ لار کړه ناليدلې | لکه ورانه ما شوره چې وي سر گومه
خراب زړه مې تورو زلفو ته هوس کړي | بارې کښېوت د مرغه پڅېر په لومه
هسې کوډې عاشقۍ را باندې وکړې | چې سنگين خاطر مې نرم شه تر مومه
چې يې هطڅ له خدايه ترس و وېره نه شي | الغياث د دلبرانو له رسومه
کله را کاندي شراب د لعلو لبو | کله جام د زهرو را کاندي چې شومه
د مطلوب له طالبانو چې ځان شميرې | ای رحمانه اول سيال شه بيا يې مومه

۶۵

اعتماد به په دنيا کوې تر کومه
دا رفتار به پسې شا کوې تر کومه

څو به پټ له مرگه گرزې سپينه ږيره
په روښانه ورځ به غلا کوې تر کومه

چې د دهر له يارانو وفا غواړې
صيادي به د عنقا کوې تر کومه

د پيرۍ علاج په ډانگ په لوړ نه شي
دغه کار به په عصا کوې تر کومه

په غفلت به څه اميد د مرحمت کړې
د ناسور د رنځ دوا کوې تر کومه

ته چې پند وايې ناصحه و رحمان ته
شکايت به د قضا کوې تر کومه

۶۶

شمع د دلبر سترگې عاشق پرې پروانه
ځان پرې خپل جليا کا شي يې خونه ويرانه

مطرپه معنی کې د دلبر د مينې بحر
شو صدف د سترگو واړه پر په دردانه

غم مي د زړه وينې تر چشمانو رابېرون کړې
اوښکې ندي وينې ولې شوې دا بهانه

زه په دا له سترگو ځکه سيند د اوښکو بيايم
يې چې ماهي د وصال وی په آب خانه

شوه چشمه د سترگو ستا د غم په وينو صافه
ځکه مي همېش اوښکې بهېږي روانه

خير د ديدن وخوار عاشق ته ارزاني کړه
ته دلبر غني يې د خپل مخ په خزانه

اوښکو د فراق دربانډې زور وکړ رحمانه
هېڅ پروا يې نه شي بې پرواهه مستانه

عقل د رحمان دې په جفا سره مسلوب کړ
مکړه مکړه مکړه هسې بده يارانه

۶۷

ډير عمر مې تير کړ بيهوده په زمانه
نور دې زما سر وي او د ترکو آستانه

هېڅ مي حاصل نه کړه په شيخۍ و په تقوی کښې
پس له دې مي وار دی هر چې شي په ميخانه

شيخ و شيخي ورد و وظيفه و ذکر فکر
زه و ساقي جام و باده چنگ و ترانه

زه وزاهدانو ته حيران يم دوی و ما ته
ديوانه به ده خندد و ده به ديوانه

گنج د دُرو جار شه د عاشق تر څاڅکي اوښکو
نه خروار د عقل نه د عشق يوه دانه

تيغ د يار له لاسه په مرۍ د عاشقانو
هسې لذت کاندې جوړ د ميو پيمانه

خدای لره به ور شم په سودا د يار له مخه
بل مقصود مي نشته په کعبه په بتختانه

زه له ډېرې مينې په تش بوی د يار شيدا يم
تل د لمدو ختو اوبه لړ وي بهانه

ځکه زاهد زهد کا د يو جنت دپاره
سر ښندلی نشي په اوربل د جانانه

گوره د منصور هسې په دار نه شي رحمانه
مه کړه دا دعشق خبرې مستې رندانه

بله نښانه د عاشقۍ نشته رحمانه
بې نام و نشان شه که يې غواړې نښانه

۶۸

تل ژړا فرياد کړم د دلبر په آستانه
کله به و ماته مخ ښکاره که مستانه

زه لکه مجنون ولاړ په طمع د ليلا يم
اوس به ليلا راشي پر سپين مخ زلفې شانه

راغلم ستا زيارت ته که مې زړه يقين نور نه شي
ټيک پيزوان مې دواړه پيره ستا دي شکرانه

تيغ د معشوقو دې په گردن دی عاشق ابنی
هسې رنگه زيب که لکه مې په پيمانه

چېرې د منصور په دود سنگسار نه شي رحمانه
مه کوه د عشق خبرې ډېرې رندانه

۶۹

که له مخه يوه خوا کا حجابونه
خدای به ورکا و خوبانو ثوابونه

کله وي چې يو په رنګ د هغه يار شي
که هزار شي په آسمان کښې آفتابونه

په ګرداب د زنخدان يې هسې غرق يم
هېڅوک مه شه غرق په هسې ګردابونه

لکه زه چې يې له غمه په عذاب يم
خدای دې نه ږدي په چا هسې عذابونه

ګفتګوي مې هېڅ اثر ور باندې نه کا
که له غمه يې تصنيف کړم کتابونه

په يوه ځواب مې رد کا هزار سواله
هسې کاندي سوالونو جوابونه

هېڅ پاياب د فن فريب يې مونده نه شي
څوک به څه غواړي د بحر پايابونه

که لږ سترګي وبله کيږدم راته وايې
په ياری کښې عالم نه کاندي خوبونه

مال و ملك يې همه واړه اوبه يوسي
د هغو سترګو چې درومي سيلابونه

د کږو وروځو محراب ته يې حيران يم
څه نسبت لري بتان و محرابونه

ما هاله له پارسائی و لاس وکښلی/نه وو لاس وللي
چه په لاس کړه مطربانو ربابونه

ارغواني جامي يې واغوستي/چه آغوندي رحمانه
بيا ئي جوړ کړه ستا د قتل اسبابونه

٧٠

را کوي د بيدرديه پيغورونه
بلوي مې په تندي باندې اورونه

نور څه نشته واړه غوښې دي د زړونو
چه و رژلی شي د ترکو په تيغونه

هر نګاه ئې په وکښو د زړونو ښېر دی
هميشه را باندې ازمائي زورونه

خدای دې تور د تورو سترګو چا ته نه کا
عالمونه ئې ورکيږي په تورونه

يو د حسن اور يې بل کړ په جهان کښې
په دا اور باندې دې وسوه ډېر کورونه

زه د يار په مينه غل کړم رقيبانو
ګنه نور ئې کوم راپوري وو پورونه

د رحمان د عاشقۍ هسې غږ وشه
چه بر پای شوه په هر ښهر کښې (ش)ښوورونه

٧١

په خاطر مې غلبه شول ستا غمونه
لږ د خدای دپاره کيږده قدمونه

څه خو قياس زما د ډېرو اوښکو وکړه
چې مې چيري وو په تن کښې دا رودونه

هر چې ستا په دم ژوندي وي نه رغيږي
که بې تا په ځان پوکي هزار دمونه

که هزار هزار دمونه په ځان پو کا
نور به نه کا په دمونو قسمتونه

له قسمته خلاصيده د هېچا نشته
که داخل شي د مکې به حرمونه

سر يې کله په کوشش تر ځايه رسي
څو د خدای له لوري نه وي کرمونه

چې توانګر د قناعت په خزانه شي
نور به څه کاندي دينار و درمونه

قسم وخوري له خوبانو بيا يې مات کا
څه باور دی د رحمان په قسمونه

٧٢

ژوندي کاندي د دنيا کارو بارونه
چا کاره دي په سر ايښې دستارونه

څوك سر تور پښې پيل خاورو لره درومي
بلکه يو له بله اخلي آزارونه

ښه استوګنه د دوو ورونو سره نه شي
په چمن کښې هم ګلونه هم خارونه

د يوې ونې له ښاخه پيدا کيږي
چې يې نه په چا حساب شي نه شمارونه

هومره خلق هره ورځ له دنيا درومي
هميشه په هېچا نه وي دا وارونه

يو يووار دی په هر چا باندې تيريږي
څوك دې نه کا په ما قنج و بازارونه

ډېر تودوکي بازارګي مې تر سر تېر دی

جدايي د آشنايانو هر دم کاندي
په رحمان باندې د تورو ګذارونه

په مړ و پريواته د خاورو انبارونه

٧٣

پېڅ پناه مي په خاطر لګي اورونه
چي را ياد شي د مئينو بشرونه

تل جرس درته واهه د کوچ ډليال شئ
پرديسانو زلمو وتږی بارونه

راشه ورشه حال يې وګوره چي څه دی
پر مينو باندې پرېواته قبرونه

تا چي دا شېرين بشر خاورې بيابان کړه
تر شېرين بشر يې وخاته خارونه

ها ميين چي تا ليده اوس ليده نه شي
دي بند شوي د لحد په حصارونه

يوه ذره د محبت ورکړه رحمان ته
چې بې تا يې په زړه نور نه شي فکرونه

۷۴

دريغه وليدای يو ځل هغه مخونه
چې دراز لري مژګان دراز قدونه

دراز قد دراز مژګان درازې زلفې
وړې شونډې وړه خوله واړه غاښونه

د آسمان شمس و قمر به ترې قربان کړم
هم د زمکې په سر واړه سره ګلونه

چې يې ووينم په مخ مي اوښکې درومي
د پسرلي له مخه ووري بارانونه

که يو ځله يې مخ ووينم په سترګو
ما په زړه کي قبول کړيدي نذرونه

د هجران په شپه سوړ کېږ راته سور اور شي
يو زمان مې باندې نه لګي اړخونه

چې په سپينو اننګو دې زلفې زانګي
ښاماران دي د چنډنو په ښاخونه

که خدای غم د جدائيه ورته آسان کړ
و رحمان وته آسان دي نور غمونه

۷۵

که ستا خپله سيه رويي نه وي دښمنه
آئنه زما د زړه نه ده خچنه

ته چه ما وته په نظر د عيب ګورې
دغه واړه عيب ستا دی ای عيبجنه

خپل صورت په آئينه ګښې هر څوك ګوري
که څېره د چا صفا وي که ريمنه

چوهاړي د حلال خور په نامه بولي
له ښو خلقو بد ګويې نه ده ممکنه

ته چې بد له بله وايې زه ويرېږم
چېرې خپله بدي نه کړې معينه

تر هغه به ړومبی عيب ستا څرګند شي
و هر چا و ته چي کړې د چا غندنه

چې هر چا وته دې کړي ده غندنه

هر رنګ تخم چې کرې هغه به اخلې
خپله خپله ميوه نيسي هره ونه

که له خپله عيبه ځان ژغورې رحمانه
د هيچا له عيبه مه کوه پوښتنه

۷۶

ما وې زه به نه کړم په خوبانو باندي مينه
مينه د خوبانو وچوي د صورت وينه

خدای زما په برخه عاشقي کړه له ازله
خوښ يم په دا برخه که ترخه ده که شيرينه

زهر دي که قند دي هم پخپله خوله څرګند دي
نه مومي څوك خوند د بل د خولې له انګبينه

زمکه هغه سوزي هرچي اور ور باندي بل وي
روغه خلقه شوه د رنځورو تماش بينه

ښه توښنه مي نشي په تش ډاډ د کور و کلی
مرد بويهٔ چه واخلي د غم پيټی له غمګينه

نور عالم به څه کړم زه مريد د هغه کس يم
هر چه و ماراکا يو پيغام له نازنينه

څو به سوك په سترګو غړوم له هسیغمه
څو به مي تل څاڅي د ويني د زړه له آستينه

سر د رحمان درومي د هجران په تيره توره
ته يې نګهبان شې يا اله العلمينه

اور د جدايئ په رحمان دی لګېدلی
وخت دی که مدد کړې يا ميران محی الدينه

۷۷

یاد وي په خوله مکه او مدینه نسکور پروت یې د عورتي په سینه
زوړند سر لکه غنچه مراقبه کړي پټ دې نقش د زړه رخت دی رنگینه
د اطلسو قبا غواړي نه یې مومي له ناکامه دې خرقه کړه پشمینه
عبادت دې څو تیری تر معصیت کا څه خو ونیسه و ځان ته آئینه
کینه بده ده بې شکه جنگ حرام دي نه له نفس وله شیطان سره کینه
د مردانو کار له نفسه سره جنگ وي نه زنان غوندي له نقش و نگینه
تر ناپاکو نارینه و وي بهتره پاك دامنه پرهیزگاره ارتینه
د دینداري ارتینې له یوې گوښي صدقه شه سل بې دینه نارینه
نیکو کار سړی بهتر دی که خورد سال وي تر سپین ږیریه بد کرداره دیرینه
بد کردار که صد ساله وي و رحمان ته څرگندېږي لکه طفل شبینه
راشه نجومي زما د یار فال وگوره تللی یار به کله له سفره را بشینه

۷۸

هرچې خپلي میني خوارکړ خوار یې مه گڼه عشق د رحمت ابر دی غبار یې مه گڼه
کله تور سنبل کله تور مښکه کله عنبر شي زلفي که د مار په څېر دي ماریې مه گڼه
یو مخ یې د سوز دی سل مخه (یې) د ساز دی عشق په اصل نار دی نار یې مه گڼه
ډېر بیدار ویده دی لکه بت په غټو سترگو بت که درته غټ گوري بیدار یې مه گڼه
مراد خو یو اثر دی د خوبانو له رخساره هرچې اثر نه لري رخسار یې مه گڼه
خار چې په گل پورې د گلو په حساب وي څه وشو که نام د خار دی خار یې مه گڼه
یوه خلک هغه دي چې اقرار په ناپوهی کا هرچې ځان هوښیار گڼي هوښیار یې مه گڼه
بد خو هم هغه دي خپل بد ور څرگند نه وي هرچې ځان بد کار گڼي بدکار یې مه گڼه
هرچا چې اقرار د یار له زلفو سره وکړ تل به نا قرار وي په قرار یې مه گڼه
هرچې کمال غواړي کمیني د رحمان کا عین دغه چار ده بله چار یې مه گڼه

۷۹بیا دي مخ دی جار وتلی څه بلا شوه دا بلا له کومه لوري را پیدا شوه
ورځ چې واوړي دغه هسې نه وي څه وي لکه نن چې د خپل یار و ماته شا شوه
دا زما په یار گښي مهر و وفا نشته که دنیا واړه بې مهره بې وفا شوه
چې یې هېڅ له خدایه ترس او ویره نه شي په نصیب مې یوه هسې دلربا شوه
چې یې حسن وته یې گورم حیرانېږم را څرگنده یوه هسې تماشا شوه
څه د حد و د حساب خبره نه ده بې صبري مې تر حسابه زیاته لا شوه
قراري مې په طلب کښې شوه حرامه بې‌غمي مې په مذهب کښې ناروا شوه
چې راکښلی مې پرې غشی د دعا وه هغه نښه مې و نه ویشته خطا شوه
لکه پوچ بادام بې مغزه بې حاصله هسې پوچې بې حاصله مې دعا شوه
عاشقي چې مې له خلقو په غلا غلا کړه هغه غلا مې په تمام جهان رسوا شوه
څه بهره به له نسیه معاملو مومم چې مې نقده په ورغوي کښې نسیا شوه
درد بیرته جاروتو شه راته پورې په نصیب مې بله نه وه دا وه دا شوه
یوه برخه هر سړي لره خدای ورکړه زما برخه آشنایي د خپل آشنا شوه
د تدبیر په دام به څه شکل کښېوزي معشوقه چې مې په مثل د عنقا شوه
ورځ چې واوړي دغه هسې نه وي څه وي لکه نن یې د خپل یار وماته شا شوه
چې یې زر کړو زیړ رخسار زما د خاورو عاشقي نه وه په باب زما کیمیا شوه
څه حکمت د یار په مینه کښې خدای کښېښود چې‌عاشق لره هم درد شوه هم دوا شوه
دا باران نه دی چې ووري له آسمانه د مرغانو په رحمان باندې ژړا شوه

۸۰

ای د نفس او حرص په هوا لېوه
په ظاهر صورت ملک په معنی دېوه

شدادي خصلت دي ونیوه د ظلم
خبر نشوې د مسکین د زړه له غرېوه

تا چي مخ د فرعون په دود تور کړ
په دي خوی به برابر نه شي له نیکېوه

پر وجود به دې څه رنګ حاصلېږي
چي لېږې د یار له دره دد و دېوه

په ظاهر صورت تندرست په روح رنځوره
درېغه وسوی تر دغه پوست لاندي معتېوه

د نېستی له مکافاتو هغه خلاص شول
چي هستي یې د فنا په مخ ایرېوه

اور دې پاڅاوه له خوبه (باور وکړه)
ورحمان وته په خپله په نارېوه

۸۱

چي په نور څه پوري زړه تړې بې خدایه
څه پوهېږې چي په ځای کړې که بې ځایه

دا خو نشته چي به تل تر تله پایې
که بیا پایې خو تر سلو کالو پایه

که دې سل کاله شي عمر خو به تیر شي
دغه پسه بیا به څه کړې راته وایه

سم له لاسه چارې نه شي مرد هغه دی
چې بیدار وي و غلیم وته له ورایه

ته په اصل کښې سړی یې څاروی نه یې
د چارپایو چارې مه کوه دو پایه

مرتبه به دې د مچ او د میږي شي
زړه په غوړو غوښو مه تړه همایه

موړ به نه شي په حرص بې قناعته
اې په تخت د اورنګ زیب ناسته ګدایه

وړاندې سرای لره توښه تړه رحمانه
څو سفر دې کړی نه دی له دې سرایه

۸۲

په حالت د عاشقانو نظر بویه
په زیارت د شهیدانو ګذر بویه

بې مرشده څوك خبر د مرید اخلي
غوځ په غم د فرزندانو پدر بویه

بې ریباره رسیده و یار ته ګران دي
په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه

بې هنره چا دولت موندلی نه دی
په خدمت د صاحبانو هنر بویه

ستا له سترګو مې هر ګور ملاحظه شي
له دې هسې سیاه دلانو حذر بویه

ښه چي سترګي خدای ملالې کړې د ترکو
لږ په زړه د ظالمانو اثر بویه

ستا په داغ به هر یو زړه مشرف نه شي
دغه تاج د بزرګانو په سر بویه

چي خبر د رحمان نه اخلي یار بد کا
بادشاهان له ګدایانو خبر بویه

## ی

۱

زړه مې ورکړ و خودرای
هر چي شي تکیه په خدای

په سودا د عاشقۍ کښې
یا به شاه شم یا ګدای

یا به کښېنم و دونهۍ ته
یا په سیوري د همای

چې خدای کا هغه به وشي
نه بل خدای لرم نه ځای

بې دلبره به ور نه کړم
بل و هیچا د زړه رای

پای بوسي به یې پرې نه ږدم
څو مې رسي دست و پای

یا خندا ده په دنیا کښې
یا ژړا ده په وای وای

تر دا دوو چارو پههور ته
نور څه نشته به دا سرای

عاشق بویه چې صادق وي
نه خود کام و نه خود رای

خدای دې نه کا څوك په عشق کښې
جو فروش ګندم نمای

زه رحمان په کار پوهېږم
که مې مل شي کار فرمای

۲

کاشکې زه خاورې ایرې د ستا د در وای
چې قدم دې همیشه زما په سر وای

خو یو ځله زما و ستا و بله مخ شوای
نورمې موخه ستا د غشیو په تېتر وای

تمام تن مې د رانجو په څیر اوړه شوی/وای
خو په ما د تورو سترګو یو نظر وای

په زیړ رنګ په سپینو اوښکو به ما بیا موند
که د ترکو ملاقات په سیم او زر وای

ملامت به په ما څه لره وایه شه
که د ستا له دلبری نه څوک خبر وای

مرتبه که ستا د عشق شي ور څرګنده
ملایک به واړه وایي چې بشر وای

تماشه به زما هله در ښکاره شوه
که ته ما غوندې بیدل وای زه دلبر وای

په خونبار به زما سترګو غوندې نه و
که په مخ مې د تیرو تورو پرهر وای

ستا په درد کښې طبیب وایي و رحمان ته
لا به ښه وی که دې حال تر دا بتر وای

یا شبنم د صبحدم یا عندلیب شوی
چې دا ستا په ګلشنو زما ګذر وای

۳

یو یو داغ په تېتر ایښی د هر چا دی
که پادشاه د ولایت دی که ګدا دی

سیرابي په سر چشمه د دنیا نشته
تشنه لب یې ګوښې ګوښې په غوغا دی

لږ راحت په ډیر زحمت سره/باندې مونده شي
د دې دهر خس حرام شه که ویړیا دی

د دنیا ښادي بې غمه مونده نه شي
لږ خیرات د شوم له کوره په بلا دی

فراغت پرې باندې ولې حرام نه وي
چې داخل په سراچه د دې دنیا دی

د مجنون د حال پو ښتنه به څوك څه کا
جهان واړه کوراکور مجنون لیلا دی

عشق یوهسې رنګ افسون په عالم پو کړ
دهر چا یې برخه ورکړه ګوښې ګوښې
چې عاشق په تورو سترګو نابینا دی

خپل قسمت د هر سړي جدا جدا دی

ورکړه راکړه پیروده د بل په لاس دي
هلته دخل نه د ستا دی نه زما دی

په هر څه چې د صاحب د زړه رضا شي
په بنده که ناروا دی هم روا دی

خواه نا خواه که یې رضا وي او که نه وي
د قسمت رسد رضا و نا رضا دی

ځان جهان سپارلی بویه و هغه ته
چې یې حکم جاري شوی په هر چا دی

د هر چا په لاس چې حکم حاکم ور کړي
جهان واړه د هغه په مدعا دی

چې مولا در سره مل نه وي رحمانه
که لښکرې ورسره وي يك تنها دی

۴

هسې رنګ نعمت را کړی خدای و ما دی
چې هیڅ شي بها یې نشته بې بها دی

یو خو دا چې یې په شکل د آدم کړم
دویم دا چې محمد مې رهنما دی

لاس و پښې و غوږ و سترګې خوله او ژبه
یو صورت مې په څو اسمه مسما دی

آسمان زمکه نمر سپوږمۍ و روښان ستوري
درست جهان مې و نظر ته تماشا دی

شپه و روځ د ماه و مهر له پرتوه
مخ د زمکې راته درست نقره طلا دی

په شپه مښک په ورځ کافور را باندې وورې
درست صورت مې په کښېغرق سر تر پا دی

په هر دم زندګاني بخښي و ماته
هر نسیم د یار له لوري مسیحا دی

د چمن و سرو ګلونو ته چې ګورم
هرهر ګل راته له ورایه په خندا دی

د ګلګونو میو ناوې راته ناسته
زنګاري قمیص آغوستې د مینا دی

خپلې وینې په ورغوي کښې نیولې
هر ساغر د مې فروشو جان فدا دی

د شنه رود په غاړه ناست سرود په لاس کښې
هر مطرب لکه بلبل هسې ګویا دی

سپین مخونه سرې لښتې دي د دلبرو
هر دیدن یې د آفتاب په څېر رڼا دی

چېدا هسې معرفت ئې پرې پیرزو کړ
په رحمان باندې منت د پاک مولا دی

۵

دا چې مست په میو راغی یار د چا دی — بیا به تاخت کا په کوم غولي وار د چا دی
چې زړه سوی یې د حرم په صید هم نه شي — دا بې درده و بې صرفې ګذار د چا دی
ما خو نه دی څوك بې وجهي آزار کړی — دا چې ما آزاروي آزار د چا دی
چې یې درست جهان د مخ په رڼا زیست کا — دا آفتاب غوندې روښان رخسار د چا دی
چې بلبل یې رسیدی تر ګلو نه شي — دا دننه په حرم ګلزار د چا دی
چې هېڅ ترس په زړکښې نه لري رحمانه — دا نا ترس و بې پروا نګار د چا دی

۶

غواصان که ګوهر غواړي ګوهر دا دی — بیدلان که دلبر غواړي دلبر دا دی
زما یار غوندې به بل یو دلبر نه وي — د جمله ؤ دلبرانو سرور دا دی
خوند د لبو او د چاه زنخدان ئې — راشه ګوره زمزم دا دی کوثر دا دی
چې یې وصل او هجران وته نظر کړم — زه ګمان کړم جنت دادی سقر دا دی
ته خطبه په منبر څه لولې خطیبه — قدم کیږده په ځان باندې منبر دا دی
د کعبې سفر آسان دی مرد هاله یې — که له ځانه سفروکړې سفر دا دی
هر منعم چه دلجویي د قلندر کا — هغه نه دی قلندر قلندر دا دی
چې توانګر د قناعت په خزانه شي — بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دی
دا هنر نه دی چې خاوري څوك سره زر کا — چې زر خاوري کا رحمانه هنر دا دی

۷

هغه زړه چې ستا د عشق په اور کباب دی — که مرهم ور باندي کیږدې ډیر ثواب دی
حجابونه له اغیارو مناسب دي — د یارانو په یاری کښې څه حجاب دی
بې تا چې ښایسته یې بې حسابه — نور ښایست د جهان واړه په حساب دی
ښاپیری که هرڅو ډېرې ښایسته دي — په هغو کښې هم ستا حسن انتخاب دی
لکه ګل چې تر آفتاب پورې خجل دی — دغه هسې ستا تر مخ پوري آفتاب دی
دا د میو څه مستي او سرخي نه ده — تیغ د سترګو دي په وینو کښې غرقاب دی
زه رحمان به ځواب څه کوم و یار ته — و ژوندیو ته د مړیو څه ځواب دی

۸

د ساقي په لاس کښې جام د مي ناب دی — مطرب ایښی په زانو باندې رباب دی
ته چې ما وته توبه وایې ناصحه — په دا وقت کښې چا څخه د توبې تاب دی
زه چې ځان منعه کوم د عشق له کاره — په دا هسې کار کښې کوم سود و ثواب دی
دا آسمان چې لوی په عقل کښې باله شي — په محیط د عاشقي کښې یو حباب دی
محتسب په رقص ګډ شو باک یې نشته — صوفي پروت په میخانه کې مست خراب دی
هر چې ژغوري سر و مال په عاشقۍ کښې — هغه کړی کور په مخ کښې د سیلاب دی
په رقیب باندې غفلت راغی ویده شو — یار پلو له مخه واخیست بې حجاب دی
ته چې خوب غواړې په عشق کښې راته وایه — کوم چا کړی د زمري په خوله کښې خواب دی
بې عمل که کتاب کېږدي په سر څه شو — ګویا ایښی یې تر پښو لاندې کتاب دی
چه د شر د عملونو نه خیر غواړي — تشنه لب غوندي سر شوی په سراب دی
د دښمن له مکارئیه وویرېږه — په نرمی یې غلط مه شه سنګ در آب دی
عبادت په شتاب هسې کړه رحمانه — لکه عمر چې دې تلونی په شتاب دی

۹

چې تر سنګ و تر آهنه یې زړه سخت دی
زړه هغه لره ورکړی ما کم بخت دی

خدایه کله به هغه غل راته ایل کړې
چې لوټلی یې زما د خاطر رخت دی

همره غم به نور په هیڅا باندې نه وي
لکه غم چې د خپل یار په ما یک لخت دی

مګر بیل په تیره تیغ شي یار له یاره
ګڼه ښاخ له خپله ښاخ سره درخت دی

د پالنګ او د پیرۍ حاجت یې نشته
د یارانو نشستن د زړه په تخت دی

چې له ډېره درده وخت پیژاندی نشي
په رحمان باندې بې یاره هسې وخت دی

۱۰

ستا له لاسه په ما جور دی که داد دی
زما مراد خو واړه ستا د زړه مراد دی

ستا په مینه کې زما له مخه تښتي
که آفت دی که آسیب دی که فساد دی

هر اهداد چې را کاوه شي ستا په مینه
په لېمه زما قبول هغه اهداد دی

که تمام جهان مې پریوزي په لیمه کښې
بې تا نه را څرګندېږي نه مې یاد دی

ما چې غوږ دا ستا د عشق په ترانه کړ
نصیحت مې نور د زړه په غوږو یاد دی

اوس زما له ننګ و نامه سره څه دي
چې دې نوم د عاشقۍ را باندې زیاد دی

هر ګلشن چې له ګلرخه بې بهره وي
د عاشق په نظر غولی د صیاد دی

د رحمان و توان ته ګوره هومره ناز کړه
څه د اوسپنو روغ نه دی آدم زاد دی

۱۱

که یې مهر و محبت که یې عناد دی
ما د یار په یارۍ کړی اعتماد دی

زه و یار که په تن دوه په معنا یو یو
هزار خونې واړه ښهر یو بغداد دی

هېڅ بېلتون زما د یار وبله نشته
کار همه واړه موقوف په خپل میعاد دی

هېڅ موقوف د معشوقې په حسن نه دی
د عاشق خاطر په خپله مینه ښاد دی

زه خپل آه آتشین له خدایه غواړم
د آشنا خاطر که موم دی که فولاد دی

چې پریشان د یار د زلفو په څېر نه وي
جمعیت د هغو زړونو لوی فساد دی

چې د آه و د فریاد طاقت یې نه وي
هر سکوت د بې طاقتو آه فریاد دی

سل په دا رنګه نومونه د عشق نور دي
لکه نوم چې د مجنون او د فرهاد دی

چې یې زړه شي هلته کښېني هلته پاڅي
عشق د عقل و د هنر کره داماد دی

بادشاهان په عاشقۍکښې ملنګان شي
ما و تا غوندې وګړي د چا یاد دی

چې پرېشان د یار د زلفو په څېر نه وي
جمیعت د هغو زړونو لوی فساد دی

که رښتیا له خرابیه سره ګنج وي
خرابات دبې بنیادو بېخ بنیاد دی

که کمال د کمینۍ په اندازه وي
فوقیت د شاګردانو په استاد دی

چې په یار پسې تر ځان تر جهان تیر شي
په رحمان زموږه هسېاعتقاد دی

چې دا نور شاعران کاندي هغه نه کا
رحمان کړی نوی نوی اجتهاد دی

۱۲

په خاطر باندې مې ستا د غم غبار دی
همیشه مې په زړه پروت انبار انبار دی

عاشقانو لره خضر ستا ریبار دی

که رهبر وي گمراهانو لره خضر
گوندي چېرې ځوك د خدای په در قبول وي
ستا له لاسه مې فریاد په هر دیار دی
د شهید و پرهارونو ته نظر کړه

هسې رنگه مې له دوو سترگو خونبار دی

چې د غم په بار ئې زړه دی زما کښلی
هم هغه مې په زړه کښلی په بار بار دی
چې هر دم مې د غمزو په تورو وژني
لا مې زړه د هغو سترگو منت بار دی
دا آسمان دي د هغه په مدعا وي
چې په ما باندې یې کړی ستا اخبار دی
که یار سل ځله جفا ور سره کاندي
د رحمان دا هسې کله اعتبار دی

۱۳

کمیني یو نادر کار دی
چې کمال ځنې اظهار دی
چې اختیار یې کمیني کړه
په دانه کښې پټ خروار دی
چرگ په دوه پیسې حلال شي
باز په سل روپۍ مردار دی
چې آسمان شه سرگردان شه
چې زمین شه بر قرار دی
نښتر گوره سر کښې کا
انگور گوره نگونسار دی
ذره خواره شوه آفتاب شوه
ابر ځورب دی غبار دی
کوه بلند شه سیه سنگ شه
لعل ووړ شه بزرگوار دی
لوی آسمان توره تبۍ شه
هلك نمر سره انوار دی
ووړ سړی گوره رحمانه
چې لوی فیل یې بار بردار دی

۱۴

زلفې دې له ډېرې درازیه پای تر سر دي
یا د بنفشې لښتې خورې په صنوبر دي
لب دې آب حیات دي یا شکرې یا نبات دي
یا خو زه غلط شوم تر همه واړو بهتر دي
قد ته دې ځوک نه شي رسېدی له بلندۍ
ولې چې معراج وته خاته د پېغمبر دي
ما چې ستا ښایست و لمر سپوږمۍ سره په تول کړه
تللي په میزان کې تر آسمانه سپوږمۍ لمر دي
ځاځکي له آسمانه په هرچا ووري یکسانه
پرخه په واښه شي په صدفو کې گوهر دي
بخت دی چې یې ځوک متمکن کړه په تخت باندې
ځوک دغم په خار سره پاره پاره جگر دي
باد چې دې په زلفو باندې قصد د پرېشانۍ کړ
ځکه یې گردونه د جهان واړه په سر دي
هله به سړی شي چې دي نوم عبدالرحمان شي
اوس سړی په څه یې که دي لوستی زیروزور دی
سپیني اوښکې، زېړ رخسار د مېني له دولته
ای رحمانه دا د عاشقانو سیم و زر دي
دا خو زه له کمبختۍ له تا زار کړم
ستا له نیکه خوی کاني بوټي هم خبر دي

١۶

دنیا دار که مستغني په سیم و زر دی
هنرمندو څخه ګنج د خپل هنر دی

بیهوده به زورآور و ځان ته وايي
د دنیا سړی که هر څو زوراور دی

هسې مه وایه چې زه یم په جهان کښې
پیدا کړی خدای د سر د پاسه سر دی

ځنې ځنې يې ولیان پیغمبران کړ ل
نه چې هر سړی ولي او پیغمبر دی

جو دانه قدرې یو لعل پکښې پیدا شي
نور جهان واړه د تورو کاڼو غر دی

یو بادشاه وي چې لښکر ور پسې درومي
نه په هر یوه سړي پسې لښکر دی

پیدا کړي خدای سړي په تفاوت دي
هسې نه چه جهان واړه برابر دی

که د عمر و رفتن ته څوك نظر کا
دا به وايي چې آفتاب د نمازدیګر دی

چې يې سر په زمکه ایښی وي و یارته
په آسمان باندې ختلی لکه نمر دی

ته تعجب زما د ډیرو اوښکو مه کړه
ما موندلی په دا بحر کښې ګوهر دی

د ریا خرقه يې خدای مه کړه په غاړه
رحمان کوږ دستار تړلی قلندر دی

درد وغم د عاشقۍ جوړه سره که
خدای ورکړی و دنیا ته يې سرور دی

١٧

دواړه سترګې مې کږې د ستا په لور دي
مدام ډوبې د فراق په آب شور دي

زه یو سپی یم چارچشمه د ستا له سپیو
چې مې ستا و درته دوه سترګې څلور دي

کندولي مې د دوو سترګو ستا په طمع
وهر در وته نیولي کور په کور دي

چې مې خیال د ترکو ولید په خپل زړه کې
دواړه کسیمې و زړه وته نسکور دي

اعتبار د زمانې په اشنا مه کړه
همګې واړه د خپلو رختو چور دي

ما قبول د رقیب ناز کړ ستا دپاره
سود وزیان په داجهان کې خور او ورور دي

په رحمان باندې ګمان⇔داهسې مه کړه
چې بې تا په نورڅه غولېږي هغه نور دي

١٨

ستا له غمه مې په سر کښې هسې شور دی
ګویا میشت مې په سر ښهر د لاهور دی

په افسون او په جادو د تورو سترګو
خراب زړه مې له جمله عالمه تور دی

که مې زړه له غمه وچوي راته وايي
غم د هجر دغه مه ګڼه لا نور دی

د هجران په بیمارۍ کښې را معلوم شه
چې اخیستی مې آزار د پلار و مور دی

دا دنیا په مثال کور شوه د غمونو
چې په هسې کور نابړې هغه کور دی

دا جهان نه د چا خپل دی نه به خپل شي
چا په خپله رضا پرېښود چا په زور دی

چې د مرګ په پوروړیو کښې څوك ومري
دی د واړو پوروړیو زوی او وروور دی

که رحمان په عاشقۍ ملامت کېږم
ما په سترګو قبول کړی دا پیغور دی

١٩

که دلدار په دلدارۍ زما قدم ږدي
ګویا هر قدم په لاري د حرم ږدي

ځای لري که بې منته بوسه راکړي
کوم کریم په چا منت د خپل کرم ږدي

معشوقه مشفقه بویه مهربانه
نه قارون چې په ځان اسم د حاتم ږدي

هسې پټ لرم دا زیړ رخسار له خلقو
لکه زر چې څوك له خلقو پټ پنهم ږدي

خدای و ما وته ګلونه د جنت کړل
که داغونه مې په زړه باندې د غم ږدي

هېڅ مانه دي څوك له مستو سترګو نه کا
کوم یو مست دی چې قدم په لاره سم ږدي

راحت نه دی بې زحمته چا موندلی
کوم طبيب دی چې په روغ صورت مرهم ږدي
زه هرګور تر خپل صنم پورې شرمېږم
برهمن چې سر په پښو د خپل صنم ږدي
و آسمان ته لاس د عقل نه رسېږي
دا خو عشق دی چې په عرش کرسی قدم ږدي
زه رحمان يې تاج ګڼم د يار له لاسه
که مې پند په سرد جور و د ستم ږدي

زه رحمان يې شدني په ځان ګڼمه
که يار سل ځله ناشدې چارې کاندي

۲۰

د دنيا کارونه واړه غوُلول دي
دا ګمان په هېڅا مه کړه چې مې خپل دي
هېڅ مزه په دا جهان کښې پاتې نه شوه
دا يخ ځوری په اوبو پورې کول دي
پوزه غوږ د غوښو شته په هر چا پورې
که د شرم پوزه غوږ غواړې باطل دي
که دي دوه کاسې دانې وي په کندو کښې
پس له شامه هسې وايه چه د بل دي
که ته دوه يا درې عيبونه د بل شمار کړې
بل به تا ته هسېوايي چه ستا شل دي
نصيحت د ناصحانو اثر نه کا
د سړې اوسپنې خوشې ټکول دي
دا نا اهل همدمان دي نه پوهېږم
که مچی درحمان پندې په ګوګل دي

۲۱

سپين رخسار و مشکين خال وبله ضم دي
يا محمود و اياز ناست سره همدم دي
که دې مخ په زلفو پټ شه باک يې نشته
د حيات اوبه هم پټې په تور تم دي
ستا له زلفو له رخساره له سرو شنډو
پيدا شوی شام شفق و صحبدم دي
په دهن کښې دې غاښونه تجلی کا
يا غوټی په غنچه کې د شبنم دي
نه چې اوس زما زړه غوخ ستا په غمزه دی
چاړه غوښې له قديم سره په غم دي
بې ژړا و چا ته نه ګوري سيه چشم
د نرګسو غوړيده د جوی په نم دي
راحت نه دی چا موندلی بې زحمته
ستا جفا و وفا واړه منقسم دي
ستا د حسن د تعريف له برکته
د رحمان د شعر کوکې په عالم دي

۲۳

چې د ځنګه مې دلبر په لاس کښې جام دی
نن اورنګ د زمانې زما غلام دی
مدام کله وي دنيا د دنيا دارو
بې له عشقه چې دولت يې مستدام دی
د هارون ځرخ پای نيلي دی د سپهر
ځو به دو کا چې يې دو په سر د بام دی
د دنيا چارې په مثل دي د سيوري
د آفتاب په مخ د سيوري څه مقام دی
که يې صبح ښايسته ده خنده رويه
بيا يې هسې په هر صبح پسې شام دی
نه په مهرکښې آرام شته نه په ماه کې
په دنيا راغلی هر يو بې آرام دی
ته چې خپل فراغت غواړې په جهان ګې
فراغت خاطر را وښيه کدام دی
بې غمي په دنيا چېرې ده رحمانه
يو بې غم دې ځوك را وښيې كدام دی

۱۷

ما دا ستا لمن ته اچولی دا خپل ځان دی
ستا دی زما نه دی که دانا دی که نادان دی

بې له تا که سير د ګلستان کړم د ګلونو
هسې مې زړه ستا دې لوی قامت وته حيران دی
چا پېژاندم زه چې عاشق نه وم په جهان کښې
نه پوهېږم هېڅ چې ګلستان دی که زندان دی
ډېر همزولي تېر شوه د مجنون بې نام و نقشه
اوس مې ستا له رويه نوم رسوا په درست جهان دی
لوی تر کوم چينجي دی پروا نه چې افسانه شه
عشق دی چې عاشق لره هم نام دی هم نشان دی
واړه د خپل ځان په نظر ګوره که دانا يې
واړه په سبب د عاشقيه نمايان دی
ای عبدالرحمانه درستجهان عبدالرحمان دی

په نامه د هغه خدای مېدا بیان دی
چې یو نومېي په نومونوکښې سجان دی

هم بادشاه دی د جمله و بادشاهانو
هم د هر یوه سلطان په سر سلطان دی

هغه کار چې و هر چا وته مشکل وي
هغه کار واړه و ده وته آسان دی

ځوك آفتاب شي په آسمان را خېژولی
ده آفتاب را خېژولی په آسمان دی

ځوك د نمر په مخ حجاب شي غوړولی
ده پټ کړی نمر په ابرکښې پنهان دی

ځوك په شپه ګې شي مهتاب پیدا کولی
ده په شپه کښې پیدا کړی ماه تابان دی

ځوك یو څاڅکی پرې ایستی شي له اسمانه
نزول کړی ده په مونږ باندې باران دی

ځوك شي روح ننویستی په یوه ماشي
ژوندی کړی ده په روح تمام جهان دی

ځوك و سنګ شي رنګ د ګلو ور کولی
ده و سنګ ورکړی رنګ د ارغوان دی

ځوك له خاورو شي یو ګل پیدا کولی
ده له خاورو پیدا کړی ګلستان دی

ځوک له اوره شي اوبه پیدا کولی
ده له اوره پیدا کړی زمستان دی

ځوك له سنګه شي ګوهر پیدا کولی
ده له سنګه پیدا کړی در مرجان دی

ځوك شي رزق وهر مخلوق ته رسولی
دی د هر یوه مخلوق روزي رسان دی

ځوك بنده لره ایمان شي ور کولی
ده ورکړی هر مؤمن لره ایمان دی

ځوك له زمکې و آسمان ته شي ختلی
ده عیسی لره ورکړی دا مکان دی

ځوك له خدای سره خبرې شي کولی
ده موسی مشرف کړی په دا شان دی

ځوك ایښودی په توسن د آسمان زین شي
ایښی ده په هوا تخت د سلیمان دی

ځوك په سپینه ږیره پایي تر قیامته
ده په خضر باندې کړی دا احسان دی

چې په ده شي هغه کار په هېچا نه شي
هر توانا د ده تر توان پورې ناتوان دی

په اوبو کښې یې د کاڼي کوټ پیدا کړ
ده ورکړی په کښې اور لره مکان دی

په سجود یې ځمکې سر دی لګولی
همېې زوړند په رکوع سره آسمان دی

هره ونه په قیام ورته ولاړه
هر ګیاه یې په تسبیح سره زبان دی

همه واړه په تسبیح دده مشغول دي
که ملك دی که پېری دی که انسان دی

هر ماهۍیې په دریاب کښې حمد وایي
هر مرغه یې په چمن کښې ثنا خوان دی

حق په حق یې هېچا نه ده ثنا کړې
نه له هېچا واقع شوی دا بیان دی

مخلوقاتو هسې نه دی پېژندلی
لکه ده سره چه قدر دخپل ځان دی

حد پایان یې هېڅ سړي موندلی نه دی
معرفتېي هسې بحر بې پایان دی

نه هیځوک دده په ځېر دده په شان دي
او نه دی د چا په ځېر د چا په شان دی

نه یې زیان نه یې زوال نه یې نقصان شته
دېی بې زیانه بې زواله بې نقصان دی

نه یې مثل نه مثال نه یې مکان شته
دی بې مثله بې مثاله بې مکان دی

پاك یې وګڼه بې شکه بې ګمانه
له هغه چې د چا شك د چا ګمان دی

نه یې ځوك په سترګو ویني نه لیده شي
او بې چونه بې چګونه نمایان دی

که ځوك وایي لیده نه شي لیده نه شي
او که وایي وهر چا وته عیان دی

منزه دی له جمله و جهتونو
او بیا هر جهت په ده باندې ودان دی

له زرګونو صفتونو راشه ګوره
چې یې کړی نیم صفت عبدالرحمن دی

٢٥

زړه مې ستا په فکر ذکر گلستان دی | تن مې ستا له غمه پاڼه د خزان دی
ستا د هجر په غم هسې بهره مند يم | چې په سترگو کښې مې جوړ د درو کان دی
ستا کتومې عجب زخم په زړه وکړ | چې هم وينې ترې بهيږي هم خندان دی
هسې رنگ مې د خپل زړه له وينو واخيست | چې ځان درست راته په شکل د جانان دی
که د ستا د زلفو مار کاندي خونونه | ما موندلی ځنې عمر جاودان دی
ځنکدن که هر څو تلخ و تريخ وايه شي | ستا د لبو په مدد آبحيوان دی
آشنايي تر جدايي کم زورې نده | معطر په بوی د مصر درست کنعان دی
لکه نمر په څلورم آسمان ليده شي | محبت به سل حجابه کښېعيان دی
نور د شمع په فانوس کلهپټيږي | عشق د عقل په پرده کښې نمايان دی
که د ستا په مخ کښې بوی د حجاب نشته | زه له ډيرې ځلي وايم چې نهان دی
طاووس رنگ زلفې دي چا هسې گره کړې | چې هر موی يې په څو رنگه په څو شان دی
بې پردې به حسن نه وي چا ليدلی | که څوك وايي چې ليده شي تش گمان دی
ښادي غم غوندې آسانه مونده نه شي | سور په خپلو وينو لعل د بدخشان دی
که وصال په هر زمان وای هسې دريغه | لکه غم چې د هجران په هر زمان دی
بې د ستا له ملاقاته چې مشکل شه | نور مشکل واړه په ما باندې آسان دی
هم په دا راته آسان شو نور غمونه | چې ستا غم د حد په هورته راته گران دی
يو نفس به دې له دره ببرته نه شم | څو مې يو نفس باقي په دا جهان دی
قافله د صبر هېڅ ويسا پرې نه کا | ستا له غمه مې منزل د زړه ويران دی
لکه سروسامان ستا د زلفو نشته | هسې زړه زما بې سر و بې سامان دی
لکه تا چې تور گيسو په مخ پريشان کړ | زما هڅې خراب زړه پسې پريشان دی
خوار خاطر به د رحمان سلامت څو وي | چې گذريې ستا په چاه زنخندان دی

٢۶

ستا دعشق حرفونه تور نه دي گلگون دي | هم په دا چې نوشته په جگر خون دي
تش به نه شي هغه خم د عشق له ميو | چې يې خاورې د فرهاد و د مجنون دي
د دنيا چارې همه واړه فاني دي | دا د ستا جور و جفا ولې افزون دي
مقتولان ستا د غمزو دي لاله نه دي | چې په سره کفن له زمکې را بيرون دي
چې يې هېڅ بها زلميو څخه نشته | جونه نه دي سکه گنج د قارون دي
بادشاهان په يوه دم کښې گدايان کا | ما ليدلي فسادونه د گردون دي
د رحمان د زړه خوناب مگر قبول شه | چه مخونه د دلبرو پرې گلگون دي

٢٨

غم دې هسې غلبه شه په ما باندې | چې مې ځای نه شي دننه نه دباندې
له زگيرويه نه مېنور خلق په عذاب شه | تل د وچو له کبله سوزي تاندې
زه دستا په غم کې شمعه غوندې ژاړم | ته زما په ژړا صبح غوندې خاندې
زړه مې ستا په لورې هسې آويزان دی | لکه زلفې دې په مخ دي آويزاندې
ما دې ستا د انديښنو په اور کښې سوي | د دنيا انديښنې واړه لکه سپاندې
دا دستور دی چې لوی غم په سرې ورشي | نور غمونه يې همه شي تر پښو لاندې
هر چې ما په نصيحت له تا جار باسي | بيا د ستا په لورې درومي تر ما وړاندې
سره لنبه گوره چې څه کا په وچ ډکي! | مخ د يار په رحمان هسې چارې کاندې

په دنیا کښې که څه کار دی خو د دین دی | د دې کار په کننده وآفرین دی
چې تقوی او دیانت یې شي په برخه | د هغو د سعادت ستوری قرین دی
قناعت مې هسې خوند په خوله کښې ګېښود | چې وچ ټوك مې په دهن کښې انګبین دی
بې هاتیانو بې اوښانو بادشاهي کا | د زاړه پوزې ټوکرکې یې قالین دی
چې په خواست د حاجت پورته کا لاسونه | د آسمان د ملائکو پرې آمین دی
چې قبوله کهتري کا په دنیا کښې | د هغو په بهترۍ باندې یقین دی
تل د لوړې اوبه درومي و ژور ته | حق تعلی کمال ورکړی و کمین دی
خاکساري د خاکسارانو مرتبه ده | که زړوکی یې خیرن وې زړه یې سپین دی
د سرکښو سر که ورشي تر آسمانه | په دوه ورځې پس یې ځای زیر زمین دی
چې ښیوه یې وي په سرکښې او لویې کا | د رحمت لیاقت نه لري لعین دی
که صورت یې د سړي سړي باله شي | په معنی ګښې سړی نه دی شیاطین دی
که رحمان څخه متاع د دنیا نشته | شکر دا چې نه خودرای و نه خودبین دی

۲۹

مخ د یار شمس و قمر درې واړه یو دي | قد د سرو و صنوبر درې واړه یو دي
حاجت نه لرم په شهد و په شکرو | لب د یار شهد و شکر درې واړه یو دي
که بې یاره په بستر د پاسه پروت یم | نار و خارو دا بستر درې واړه یو دي
چې یې در و هم دیوار وته نظر کړم | باغ بوستان و دغه در درې واړه یو دي
خدای د یار له هجره هېڅوک خبر مه کړه | تاخت و قتل دا خبر درې واړه یو دي
چه غبار ئي د کوڅې را باندې راشي | دا غبار مښک و عنبر درې واړه یو دي
هغه دم چې سړی درومي له جهانه | توري خاورې سیم و زر درې واړه یو دي
قلندر چې په رښتیا قلندري کا | خان سلطان و قلندر درې واړه یو دي
ور دې نه شي په پردۍ زمکه هیڅوك | کور و کر و مبصر درې واړه یو دي
چې دې نه په کښې یو یار نه دې آشنا وي | هغه ښهر ، بحر و بر درې واړه یو دي
په دکان د نابیناو جوهریانو | خر مهره لعل و ګوهر درې واړه یو دي
پسران دې عار زما له عشقه نه کا | پاک عاشق پسر پدر درې واړه یو دي
په سبب د ظالمانو حاکمانو | ګور و اور و پېښور درې واړه یو دي
غزا وشوه که ځان ستایي و رحمان ته | بې هنره ګاو او خر درې واړه یو دي

۳۰

چې دا هسې لاس په لاس دنیا پرېښو دي | څه چوا چندې په ځان پورې مښو دي
دا دنیا په مثال پوله مرګ سیلاب دی | د سیلاب په مخ کښې څه پوله اېښو دي
جل زلمي لا واده نه وي سره کونډ شي | دا رنګ چارې د مرګي د خرخښو دي
قافلې چې په دنیا کښې شوې داخلې | بیا هم هسې معلومېږي چې د لښو دي
دا سفر به په هغو باندې آسان وي | چې تر کوچ پخوا په زیرمه د توښو دي
چې بې وقته ارمان کا په وقت اوده وي | د هغو عالمو ږیري د وکښو دي
په هر شان چې یار خو ښېږي زه هغه کړم | خپلول د صاحبانو په پیښو دي
د یار غم مې لکه تاج وي په سر ایښی | نور غمونه مې همه لاندې تر پښو دي
معشوقې په عاشقانو خود پوهېږي | دلته څه د عاشقۍ نښې د ښو دي
میخواران که یې خبر شي له مستۍ نه | د رحمان د میخانې شراب د څښو دي
په خپل ځای به یې هرهر کلام په کار شي | رحمان ... طالب لره د ښکو دي

٣١

زه بلبل ستا د وصال یم بوستان څه دی
ستا د وصل په نسبت گلستان څه دی

چې آشنا شي ستا له دره له دیواره
انتظار یې په روضه د رضوان څه دی

چې روزي یې شهادت شي ستا له تیغه
احتیاج یې په چشمه د حیوان څه دی

چې مسکن یې د زړه ستا د زلفو خم شي
و هغو ته د عطارو دکان څه دی

بوالهوس که بوسه غواړي له تا څه شو
هر رنگ هر رنگ ویل کاندي نادان څه دی

هر چې لاندې خپل وجود تر خپل قدم کا
عرش یې لاندې تر قدم شي آسمان څه دی

زه چې ستا له غمه ژاړم آه فریاد کړم
برق و رعد چکاره دی باران څه دی

ځان جهان مې هسې ستا په مینه هېردی
نه پوهېږم چې ځان څه دی جهان څه دی

ته چې نه گورې و ما ته لږ مې پوه کړه
په دا کار کښې دې ضرر و نقصان څه دی

زه بې صبره یم که مهر د ستا نشته
له دې دواړو دې په زړه کښې گمان څه دی

که ستا سترگې دي قاتلې زه مقتول یم
وایه نور دې په خاطر کښې ارمان څه دی

چېمې وینې ترو مې څه پوښتې له حاله
له عیانه احتیاج د بیان څه دی

هر چې وایې ستا رسی د رحمان غاړه
و توانا و ته حجت د ناتوان څه دی

٣٢

خښ مې ستاد بنو غشي په سینه دي
پورې اوورې مې وتلي تر اینه دي

تل یې مخ د یار په مخ باندې وي ایښی
هغه زړونه چې بې زنگه آئینه دي

هسې نه چې زه نن ورځ په تا شیدا یم
ستا غمونه مې په زړه کې دیرینه دي

لکه ستورى چې بریښنا کا په آسمان کښې
په ټټر مې ستا داغونه نگینه دي

درته وایم چې له آهه یې پرهېزکړه
د هغو چې پوشاکونه پشمینه دي

که دا ستا رخسار سوزاني لنبې نه وای
ولې کسي زما تور سوي نینه دي

څه به سم په صبحدم گورې و چا ته
چې دې سترگې په مى مستې شبینه دي

هغه سترگې چې پیدا کړې خدای خونریزې
بې غضبه په غضب او په کینه دي

شرابیان چې شراب مومي خو یې شومي
کله منع په اختر په ادینه دي

چې تمام د خپل ځگر په وینو رنگ شه
د رحمان خبرې ځکه رنگینه دي

٣٣

د عاشق نظر په خورد و په خواب نه دی
مراد یې بې د یار له دره بل باب نه دی

ته نظر په خپل هنر په عقل مه کړه
دا اسباب په عاشقۍ کښې اسباب نه دی

چې د یار سره حساب د دنیا کاندي
دغه هېڅ په عاشقانو حساب نه دی

چې عاشق په عاشقۍ کښې ارباب نه شي
که د درست جهان ارباب وي ارباب نه دی

هر چې یار منع کوي له خپله یاره
دا کتاب د عاشقانو کتاب نه دی

دا حجاب چې نور عالم یې حجاب بولي
دا زما د یار تر میانه حجاب نه دی

که ثواب دی هم سوا د یار له مخه
ما گڼلی دغه کار په ثواب نه دی

که لیدلی زلیخا یوسف په خوب و
ما په وینه دی لیدلی په خواب نه دی

صبر ونیسه په مخ کښې که مراد غواړې
هېڅا کړی دغه کار په شتاب نه دی

رحمان سوال د بوسې کړی دی له یاره
لا یې هېڅ ځنې موندلی ځواب نه دی

۳۴

د عشق زخم څه د زخم په شان نه دی ... د بل زخم په څېر سهل و آسان نه دی
عاشقان او معشوقې سره پوهېږي ... دغه راز و نور عالم ته عيان نه دی
عاشقي نه ده که ګورې حيراني ده! ... کوم سړی په دغه کار کښې حيران نه دی
يو عاشق دی څوک را وښيي په عشق کښې ... چې يې رود په مخ د اوښکو روان نه دی
هومره اوښکې د عاشق په ګريوان ووري ... ته به وايې چې يو سيند دی ګريوان نه دی
دا هجران دی چې يې مرګ په عاشق ګران کړ ... که هجران ورسره نه وي هېڅ ګران نه دی

۳۵

نور غمونه که په ځان د سړي بد دي ... غم د ترکو بد د هيچا په ځان نه دی
ددوزخ د اور که تاو له حده تېر وي ... برابر د بېلتانه د نيران نه دی
چې باله شي څوک په عشق کښې کم عقل ... دا کم عقل ډېر هوښيار دی نادان نه دی
چې بې ياره زه جهان وته نظر کړم ... رحمان وايم چه ويران دی ودان نه دی

۳۶

هر نګار چې بې وفا دی نګار نه دی ... په ګلزار کښې چې ګل نه وي ګلزار نه دی
هغه يار چې اخلاص نه لري يار نه دی ... هغه کار چې بې فايدې دی څه کار نه دی
په تلخی د ميو مست خلق مې خوښ دي ... هغه خار چه بوې د ګل لري خار نه دی
ديندارې دنيا دارې دې سره لري ... ما ليدلی هېڅ دیندار دنيادار نه دی
که روزګار دی په جهان کښې عاشقي ده ... د دې نور عالم روزګار څه روزګار نه دی
چې تصديق يې په خپل زړه کښې محکم نه وي ... دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نه دی
په هر زړه چې د خپل يار د غم غبار وي ... دغه ابر د رحمت دی غبار نه دی
چا به کسب بې له عشقه نور څه نه کړه ... بارې ګنج دی چې هر يو ته اظهار نه دی
معشوقه وفا له هېچا سره نه کا ... ګنه کوم يو د دې رخت خريدار نه دی
د خپل يار وصال د خدای په داد مونده شي ... دغه کار مې د هېچا په اختيار نه دی
په رحمان باندې منت د معشوقو دی ... د بې حسنو معشوقو منت بار نه دی

۳۷

هغه يار چې بې وفا دی څه يار نه دی ... هغه کار چې بې بقا دی څه کار نه دی
که د سر ښيندل دشوار په ما و تا دي ... دا په عشق کښې سهل کار دی دشوار نه دی
انديښنه سړی بيدار کاندي له خوبه ... کم انديشه که بيدار دی بيدار نه دی
که څه عمر دې عاشق لره وصال دی ... د هجران عمر د عمر په شمار نه دی
د چشمانو په ځنبل کښې تېر و بېر شي ... اعتبار د زمانې اعتبار نه دی
که د سلو زويو پلار شي به يې څه کا ... بې وقوفه زوی د پلار څه په کار نه دی
معشوقې هميشه ناز په عاشق کاندي ... رحمان هېڅ له خپله ياره آزار نه دی

نه شها زما په سترګو کې جلوه کا ... ماه و مهر يې سپنه مخ يې آينه دی

۳۸

عاشقان دي په اور سوي دي كه نه دي ستا د عشق په اور الوي دي كه نه دي
زحمتونه د هجران واړه په عشق کښي تا و ما وته ښوولي دي كه نه دي
په دنيا كښي خو يو سر و مال ويل شي دواړه ما په تا بايلوي دي كه نه دي
تل د وروځو په ليندو د ښو غشي تا په ما باندې را كښلي دي كه نه دي
چه مدام ئي زما زړه له غمه چوي تورې زلفي دي پيچوي دي كه نه دي
راشه وګوره احوال د عاشقانو مړه د عشق په تيغ كوټلي دي كه نه دي
ناصحان چي نصيحت و ما ته كاندي چېرې دوی هم مين شوي دي كه نه دي
ښائسته كه په ښائست ملايكه وي په وكښو د زړونو روي دي كه نه دي
بلبلان پسي نارې وهي رحمانه د بهار ګلونه شوي دي كه نه دي

۳۹

دا ژوندي چه معلوميږي واړه مړ ه دي كه څه دي هم هسي وايه چي څه نه دي
يا د باد په مخ كښي خاورې دي دا تورې يا د اور په مخ كښي واړه وچ واښه دي
د خپل عمر شپې او ورځې چي په زړه كړم هسې درومي ګويا بهنده اوبه دي
غافلان كه ويني اوري به يي څه كړې دا يي خوب دی نه ليده نه اوريده دي
چي د خدای له معرفته خبر نه وي هغه واړه كه بيدار دي هم اوده دي
د رحمان د زړه له حاله خدای خبر دی چي په زړه كښي يې د يار له غمه څه دي!

۴۰

په ظاهر صورت چي ستا د در ګدای دی په معنا ګښي د جمله و كد خدای دی
مجنون بيد غوندې رونق د ګلستان شي چي يې ستا له غمه سر په پښت پای دی
چي له غمه دې جرس غوندې نالان دی د جمله و ګمرهانو رهنمای دی
چي څوك زړه د ستا و تورو سترګو وركا ستا د ورځو تور محراب لاندې يې ځای دی
چي مسكن يې د زړه ستا د زلفو خم شي د هغو ناستي په سيورى د همای دی
چي تا ووينې و ما ته نصيحت كا! شك پرې مه كوه بې شكه چي خود رای دی
كه زر دار دي اشنايان د زر دارانو د رحمان د آشنايانو تكيه خدای دی

۴۱

كه مطلب و مدعا د سړي خدای دی هر هر مړی د ژونديو رهنمای دی
مسافر كه په رحلت كښي ځبله غږ كا هر آواز يې خواب آلود لره درای دی
كه سړی و حقيقت وته نظر كا ژوندی خلق واړه ناست د مړو په ځای دی
دا خو بخت دی څوك يې سپين و څوك يې تور كړه ګڼه عيني لكه زاغ هسي همای دی
لكه فرق چي د همای و د زاغ نشته هم دغه دليل د شاه و د ګدای دی
ته نظر د كارې ګرو په كار مه كړه كار همه واړه موقوف په كار فرمای دی
سالكان چي د جهان تماشا كاندي له جهانه يې مطلب جهان آرای دی
كه څوك خپل دست و پای وباسي له ميانه خدای پخپله د بې دستو دست و پای دی
په هغه جهان نيكي او بدي نشته هر مطلب د طالبانو په دا سرای دی
زه رحمان يواځې نه يم په دا كار كښي هميشه د يار په يار پسې وای وای دی

۴۲

که د خلقو و نظر ته آدمی دی    خوار عاشق د معشوقې د کوڅې سپی دی
هر چې ځان د یار په سپیو کښې داخل کا    ترو هاله به ورته وایم چې سړی دی
ما دې خدای د یار له غمه بې غم نه کا    دا په ملك د عاشقۍ کښې لوی ورانی دی
زه د یار په غم کښې زیړه ځېره خوښ یم    دا زما خزان خزان نه دی پسرلی دی
زه ژوندون د یار و وصل وته وایم    ګنه هر یو دوزخي په ژوند ژوندی دی
ته چې ما منع کوې د یار له دره    کوم یو در د یار له دره بریالی دی
زه د یار مینې په یار باندې شیدا کړم    که څوك ما ګڼې زه نه یم واړه دی دی
چې وحشي مجنون یې ښهر لره راووست    د لیلی د زلفو هسې غړوندی دی
زر داران که اوبه څښي په جام د زرو    زما خوښ دا خپل د خاورو کنډولی دی
اورنګ زیب که د ډهلي په تخت نازېږي    خپله خونه هر ګدای لره ډهلی دی
چې له خپله کوره ووزي مسافر شي    څوك یې پېژني ساهو دی که مریی دی
چې یې خاوري شي له خاورو سره ګډې    ترو چا زده چې د کوم نیکه نمسی دی
توره شپه په آشنایانو روڼا ورځ ده    روڼا ورځ په نا اشناو توروږمی دی
نه دې سترګې پوزه غوږ د کم شناختو    په معنا کښې یو دیوال سوری سوری دی
عاشقان یې د دنیا له غمه خلاص کړه    عشق په مثل د سلیمان بادشاه غمی دی
هر چې حب د عاشقۍ لري په زړه کښې    که په قطع صد ساله وي هم زلمی دی
دا هلال دی چې لیده شي په شفق کښې    که په لاس د ګل اندامې سپین وښی دی
نا آشنا به بهره څه رنګ ځني مومي    چې مدام یې په آشنا پسې غورزی دی
څربوې مې قربانی لره پوهېږم    دا چې کړی دی په ما باندې زړه سوی دی
چې په نوم باندې باله شي لیده نه شي    معلومېږي چې نر حور یا ښاپیری دی
چې د خط په دود یې خلق په کښې پریوزي    زنخدان یې تر سبزې لاندې کوهی دی
زه رحمان له یاره خوښ یم که جفا کا    که جفا نه کا وفا کا څو تیری دی

۴۳

ستا له غمه مې په مخ باندې ولې دي    لږ مې وپوښته له حاله چې ولې دي
زه په تا پسې مجنون قارون نه یم    چې مطلب مې غوا وغیلې یا غلې دي
هغه کوډې لکه تا دي په ما کړې    کله کړې په مجنون باندې لیلې دي
لکه ما چې مصلې در پسې لنګ کړې    کوم ملنګ هسې لنګ کړې مصلې دي
بوی هم ستا د وفا نه دی را الوتي    ما پخپله خپلې کړې تسلې دي
نصیحت اثر په زړه د عاشق نه کا    ګنه یادې زما ډیرې مسئلې دي
که رحمان د عاشقۍ په تیغ شهید شي    د جنت حورې همه واړه دلې دي

۴۴

چا چې کړې و دنیا وته اسرې دي    د همه واړو په سرخاورې ایرې دي
نادانان که د دنیا په کار نازیږي    و دانا ته واړه/وته دا وشتې مسخرې دي
چې بې خدایه محبت کا هغه خلق    نارینه ئې واړه خره او ښځې خرې دي
و سپین ږیري وته مه وایه سپین ږیریه    همګي واړه طفلان د ګهوارې دي
هسې وایه چه څرې دي د زنانو    که ئې ایښې په دستار کښې قرقرې دي
چه نه فیض نه بهره ځني مونده شي    همګي واړه بې فیضه بې بهرې دي
ذخیره د دنیا مه کوه رحمانه    دا همه واړه د خاورو ذخیرې دي

په هر ځای چې ستا ثنا شي ښيوه ګرې
خر مهره شي هلته در و مرغلرې
د هغو سترګو به اوښکې وي ګلرنګې
هر چې ستا په ګل رخسار وي منتظرې
هغه کله د ناصح خبرې اوري
هر چې اوري ستا خوږې خوږې خبرې
مرور کاندي عاشق له جمله خلقو
معشوقي له هيچا مه شه مرورې
په ساعت کښې سړی مړ کا هم ژوندی کا
طايفي دي د خوبانو سحر ګرې
زه ځان ډوب ګڼم بې تا په خپلو وينو
كه مې ډوب كا څوك په شهد و په شكرې
لري لري غم دي واړه را نژدې کړ
چې له مخه دې حجاب کړ راته لرې
چې مې نوم د ستا د زلفو په خوله واخيست
را پسې شوې د بلا تورې لښكرې
هېڅ په حق د حقدارانو نه ګروهيږې
هميشه زما د زړه په وړو منکرې
زما ستا مينه څرګنده په جهان ده
ولې دا رنګه څرګنده ګواهي نغرې
زه چې ستا له غمه ژاړم آه فرياد کړم
د رقيب کره هم ډول وي هم سندرې
چې ميوه يې د کابل خوږلې نه وي
د هغو له فهمه وځکي شي ګرګرې
د ړندو سترګو حاجت د رانجه نه وي
په بد رنګه ناوې څه وايې سندرې
که په غره په سمه ګرځم باک مې نشته
زمري تل ګرځي په لوړې په ژورې
د رحمان شعر به ولې نادر نه وي
چې ثنا کاندي د تا غوندې نادرې
۴۶

عاشقی را باندې سوری کړې مری
هيڅ مې نه درومي بې ياره ترمری
څه اثر به ئي د عقل وي په سرکښې
د هغو په سر چه کښېني ښاپيری
د مژګانو په پنجه مې زړه راکاږي
خدای د ترکو مستې سترګې کړې زمری
علوفه به ئي بې غمه نور څه نه وي
هر چه کاندي د خوبانو چاکری
لږ د صبر سبق ما لره هم راکړئ
که په عشق کې څوك دغه طاقت لری
خدايه څه دې د کوتوال په لاس‌کښې ورکړم
چې شپه ورځ مې غږوي لکه توری
په صورت مې نری تبه شوه ولاړه
تا چې دواړه سترګې تورې کړې نری
د وصال دلالان کوم طرف ته غواړم؟
چې بندي شوم د هجران په کچری
نور د شمع په فانوس کله پټيږ ي
تا چې واغوستې د خيال جامې نری
زه رحمان په زړه نری کړم هغو ترکو
چې يې ملا وې د ويښته په دود نری
۴۷

که له تا يې شرم نه کيدای مهری
مخ به پټ نه و د حورې د پری
چې آفتاب دې تر رخسار پورې خجل شه
له دې ويرې زيست په شپه کا قمری
ستا تر حسنه پورې حسن واړه هېڅ دی
نيست په څه له هستو کا برابری
بې د ستا د تورو سترګو جادوګرو
کوم آهو د بيابان زده وي دم ګری
ستا د عشق د تورې هسې رنګ ګذار دی
چې له مخه يې حباب شي ککری
دلبري او دل جويي لکه د ستا زده
چا زده هسې دلجوی او دلبری
حسن واړه د عاشق په عشق موقوف دی
معشوقه که فرشته وي که چوری
و عاشق ته د يار غم واړه ښادي ده
د رضا په ملك كښې نشته دلګيری
دا دستور دی چې له درده زګيروی خيږي
ګڼه څه و د رحمان له شاعری
۴۸

ستا د تورو سترګو په یاداشت مې اوښکې اوري   حق دې که پریوزي په شبرات د عمر ستوري
زلفې دې سایه کړې مخ دې اور په جهان بل کړه   هر چا ته چه ګورم نیم په نوَر وي نیم په سیوري
څوك دې په وصال کښې قند نبات څوك ځګر خون خوري   چا وکړو دیدن د چا شو سپین د سترګو توري
اور ستا د رخسار دی ما په خپلو اوښکو بل کړو   تل په آتش سوزې آئینه چې نمر ته ګوري
سترګې مې د ستا له خیاله پریوتې و زړه ته   څه شو که مې بې سترګو صورت ځې په بل لوري
کله رقیبانو ته نظر کړې کله ما ته   ستا باران د مهر په ښو بدو یکسان ووري
ځان په مستو سترګو باندې مه غوُلوه رحمانه   دا مستان هوښیار دي له حکمته سره ښوري

۴۹

غم خواري دا هسې چېرې وي غم خورې   چې به ما دلته کښې ناست لرې ته دورې
هغه خدای چې یې ستا مخ بله لنبه کړ   دا لنبه یې کړه زما په ګوګل پورې
هم هغه دی زما تور لیمه سره کړې   چې یې ستا لاسونه سره کړه سترګې تورې
غل خو غلا د سرو مال په توره شپه کا   ته په ورځ زما د سر ود مال چورې
اصیل نه دی چا پیرودی نه یې پلورلی   ته اصیل په دیدن پیرې هم یې پلورې
دا کوم رنګ د آشنایي او د یارئ دی   چې زه ستا د مخ ثنا کړم ته مې زورې
درخانئ په سل غمونو خدای اخته کړه   زه به ولې له تا زار کوم که ګورې
زه و تا وته د ستا له جوره ژاړم   ته را واخلې سل ګیلې نادرې نورې
د رحمان په عاشقی به آفرین کړې   که لږ مخ په آئینه کړې ځان وګورې

۵۰

ته په هره ګړئ غم د سیم و زر خورې   زه دې هره ګړئ وینم چې خپل سر خورې
عاقبت به دې یو خند تر سینې ووزي   ته چې تل په هر هر ښاخ باندې ثمر خورې
معلومېږي چې خپل غم درسره نشته   ځکه غم د برادر او د پسر خورې
په عوض یې کوم طاعت کړې راته وایه   دا نعمت چې په هر شام و هر سحر خورې
روژتي په څلور پار پس افطار کا   ته څلور ځله طعام په هر پهر خورې
که یو ځله تر کماله ورسیږ ی   نور بهغوښې د خپل ځان لکه قمر خورې
که ښیښه د نام و ننګ دې شي تر څنګه   د هر چا په کجروی به خپل ځګر خورې
بې هنروله قند هم زهر قاتل دی   قند یې وګڼه که زهر په هنر خورې
نهال په زړه د صبر نخل کړه رحمانه   چې مدام د بر خوردارو په څېر بر خورې

۵۱

له چشمانو مې له غمه اوښکې اوري   چې اغیار ته یار ځما له قصده ګوري
سر و مال به د قاصد تر راتلو جار کړم   چې خبر راله راوړي د یار له لوري
تر سرکې پیزوان یې جار شه قلندره   لکه مست هاتې مدام په ځنځیر ښوري
ته چې راغلې خوبان واړه پسې شا شول   لمر چې وخیژي نور ځې پتېږي ستوري
شینکی خال دې د جبین په مخ کې زېب کا   لکه حوره د طوبی ونې تر سیوري
په رحمان د بېغمی ساعت حرام شو   لکه ببد مجنون بې شماله ښوري
ړي

۵۲

تر ابدي ورځې پورې به جفا کړې
که به مهر وفا هم چېرې پیدا کړې

معشوقې کله وفا کله جفا کا
مې باید چې کله هغه کله دا کړې

ما ستا خوی دی وهر چا وته ستایلی
چېرې نه چې دروغژن مې تر هر چا کړې

چې د ستا دغه خصلت دی زما اوښکې
دا پټ راز به مې په درست جهان رسوا کړې

ستا څه لاس را باندې نه رسي دلبره
چې په لاس د رقیبانو مې سزا کړې

مرم په دا چې د اغیار په رضا درومې
نه په دا چې ته په خپله ځان رضا کړې

چې دغه اوښکې زما دغه خوی ستا وي
دا پټ راز به مې په درست جهان رسوا کړې

په درست عمر به هیچا لیدلې نه وي
هغه چارې چې ته هر ساعت په ما کړې

ما رنځور په کټ کښې پرېږدې چې کړېږم
ته لا ګرزې د رقیب سره خندا کړې

لاس تر غاره د رقیب سره خندا کړې
چې ما ووینې له قصده راته شا کړې

هر بیګاه وایې چې خوله به سبا درکړم
دا بیګاه به په رحمان کله سبا کړې

۴۹ په پیریٰ کښې چې هوس د مې و ناب کړې
بیهوده ګمان په صبح د مهتاب کړې

بې طاعته عنایت له خدایه غواړې
د عتاب په ځای امید ته د ثواب کړې

دانسته ګناه کوې توبې وکاږې
لکه بت هسې په غټو سترګو خواب کړې

پهٔ هغو غوږو چې ذکر د خدای اورې
بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړې

په هغو شونډو چې حمد و ثنا وایې
هم هغه شونډې بیا ډوبې په شراب کړې

علم وکړې هېڅ عمل ور باندې نه کړې
لکه طفل هسې لوبې په کتاب کړې

په شپه پروت یې د مغان په میخانه کښې
او په ورځې مخ په لورې د محراب کړې

تمام عمر د دنیا په طلب ګرزې
بیا د خدای په طالبانو ځان حساب کړې

له خالقه دې نه شرم نه حجاب وي
له رحمانه ګوښه ونیسې حجاب کړې

۵۴ چه مدام د بل و عیب وته نظر کړې
خدای له خپله عیبه ولې نا خبر کړې

که یوه جو دانه عیب وینې په بل کښې
هغه یو جو دانه عیب به یې لوی غر کړې

که دې خپله ګناه لویه لکه غر وي
په حیله حیله به غر د مچ وزر کړې

که څوك تله د انصاف په لاس کښې درکا
خپل ټټو او د بل آس به برابر کړې

که څوک تله د انصاف په لاس کې درکړي
چې له حقه و باطل وته ګذر کړې

خدای و تا د ملائکو مقام درکړ
ته دا خپل صورت پخپله ګاو و خر کړې

په نعمت یې شکرانه کولای نه شې
چې زحمت درباندې راشي شور و شر کړې

چې خدای ستا په رضا کار کا ستا هم بویه
چې دا خپله رضا واړه و خدای ورکړې

نه هغه چې دی به ستا په رضا کار کا
ته خپل ځان دده په کار کې مقصر کړې

که دې یو ویښته د ځان د پاسه کوږ شي
ځان هغه ساعت له خدایه مرور کړې

که ښندلی دی په خدای وي یو ککوړی
نمایان یې په جهان کښې لکه نمر کړې

لکه څوك تر مکې لاړ شي بېرته راشي
د دنیا دپاره هسې لوې سفر کړې

که یوه رتیٰ دې زر دې په لاس کښې کښېوزې
خرځ خروار د عبادت په رتیٰ زر کړې

د ځوانۍ عمر دې تېر کړو په غفلت کښې
په پیریٰ کښې به څه زیرمه د محشر کړې

په دنیا پسې دې نمرې دې رنګ کړې
ځان و خلقو ته درویش و قلندر کړې

لکه وار چې د زړې لولی تېر شي
اوس توبې له ضرورته په سپین سر کړې

په پیریٰ کښې د ځوانۍ چارې نه شي
ته په ورځ د عاشورې به څه اختر کړې

لکه بیخ د زړې ونې چینجي وخوري
په دا تېر عمر به څه ښاخ و ثمر کړې

دغه باغ به دې خلاص نه شي له خزانه
که چاپېر ور ځنې سد د سکندر کړې

و بد خواه وته څوك نیک نصیحت نه کا
رحمان ستا په غم شریك دی که باور کړې

۵۵

د آشنا له لاسه ناست یم په زړه ستړی — په فلوس مې په کار ندی درست وګړی
چې په ژوند یې طمع پرې کړای شي له ژونده — نور په څه باندې وېرېږي سر پرې کړی
که ژوندون د عاشقانو په وصال وي — زه محجور یم په دغه روایت مړی
خوږ ژوندون مې جدایې هسې تریخ کړه — چې له غم له تخۍ دم نه شم رانغړی
دا صورت په مثال خس محبت اور شه — چې په پوزه یې پېزوان شه د عشق پړی
لاعلاج به لکه اوښ باربرداري کړه — ترو د اور په مخ کې څه کاندي خسنۍ
له احواله یې ورو ورو پوښتئ یارانو — بېلتانه د رحمان وار دی خطا کړی

۵۶

څو به هسې آزادي په دا جهان کړې — چې خبرې به د سر او د سامان کړې
همېشه به دا بهار درباندې نه وي — چې به سیل په بوستان په ګلستان کړې
واړه دَر دې بدلوې یې په مشکنیو — هر تلاش چې د دنیا په سود وزیان کړې
غمخواري د آل عیال دې احمقي ده — چې د بل په زېرمه ګرځې خپل تاوان کړې
په نفاق کې به ضایع شې مرد هاله یې — که پخوا تر دښمن جمع خپل کاروان کړې
چې په دوو بېړیو پښې ږدي هغه ډوب شي — بېهوده دلبستګي په این و آن کړې

۵۷

خدایه مه کړه نا امید هغه وګړی — چې امید یې وي د ستا په کرم کړی
ستا له رحمه به زه ولې نومیدي کړم — چې دې ځان دی د رحیم په نام نومړی
خواست زما قبول کړې ای مالک الملکه — ستا د اسم اعظم روی مې دی دروړی
خلاص یې مه کړه بندیوان ښه دی چې مرینه — چې په غاړه یې وي ستا د مینې پړی
همېشه به رنځړی او رېمن ګرځي — چې یې نهال وي په سینه د مینې زړی
دا نیمګړی سړی ننګ هم د خپل نام کا — ته خو خدای یې چې په هېڅ نه یې نیم ګړی
هېڅ بنده دې بزرګي کښې لیده نه شي — څو تا خط د آزادۍ نه دی ورکړی
دا همه واړه شومیت دی د شومانو — ګنه ته د چا په زیرمه نه یې ستړی
چې بې تا یې په زړه بله سودا ګرزي — تر مقصوده به و نه رسي وګړی
هر چې ستا په لار قدم د راستۍ کیږدي — که یې زیان وي زه رحمان یې پوروړی

۵۸

خدایه زړه د رقیب نرم په احسان کړې — ماله یاره یار له ماسره یکسان کړې
هغه درد چې د آشنا د بیلتانه دی — دفع رفع یې د وصل په درمان کړې
ته چې ما منع کوې د یار له لوري — کشکي باد د سحر منع په بوستان کړې
غم د هجر چه تیری، تر اوره سخت دی — له دې غمه مې په امن په امان کړې
کاروبار د عاشقۍ چې ډیر مشکل دی — دا مشکل زما په ما باندې اسان کړې
حجاب لرې کړه زما دیار تر میانه — بې حجابه مخ د یار راته عیان کړې
که مطلب د نورچا نورې مرتبې دي — ما ګدای په آستانه د خپل جانان کړې
که دا نور عالم و بلې خواته ګوري — ما په لوري د دلبرو نګران کړې
نه به ما منع کړې ته، له خپله یاره — نه به کوز په ځمکه ستوري د آسمان کړې
زه چې یار لره ورځم په هغې لارې — مهتر خضر مهتر الیاس مې رهبران کړې
تاریکي د معصیت راڅخه واخلې — د طاعت په روشنایي مې زړه روښان کړې

۵۹

چې زما په پریشانی یې زړه ښه کېږي
زړه یې ما غونډې په یار پسې پریشان کړې

چې زما په چمن راشي گستاخي کړي
د شبنم په څېر یې عمر یو زمان کړې

چې آزاده د منکر تر سره پریوزي
د فلک په څېر مې توره د زبان کړې

هغه غشی چې د ترکو د غمزو دی
هر کلام مې دهغه غشي پیکان کړې

چې کشور د افغانانو معطر کا
د هر بیت مسرئ مې زلفې د خوبان کړې

چې هرحرف یې دنافو هسې خوشبو شي
برکت مې په جزدان په قلمدان کړې

الهي د خپل حبیب له برکته
دا ساده انشآ رنگینه د رحمن کړې

٦٠

ما په تا پسې دا سپنې جامې رنگ کړې
ته لا بیا په ما گمان د نام و ننگ کړې

هېڅ اثر دې په سنگین خاطر و نه شه
که هر څو مې مصلې در پسې لنگ کړې

دل سوزي به دې په نور وگړي څو وي
چې له ما غونډې مخلصه سره جنگ کړې

ته په عشق کښې ما هاله دروغژن بوله
که یو بل هم هسې ما غونډې ملنگ کړې

دا نارې سورې په عشق کښې دي غمازې
ما به د بلبل په څېر آلهنگ کړې

عاشقي و معشوقي ته سپینه لار ده
ته و ما وته دا سپینه لار گړنگ کړې

چې یو دم مې له نظره پناه کېږي
دا جهان لکه لحد را باندې تنگ کړې

په ښه خوی سره د خلقو افسانه وې
خدای زما له کمه بخته په زړه سنگ کړې

دا دې څوك له څنگه ناست دی نه پوهېږم
چې خبرې د رحمان سره په جنگ کړې

٦١

که د عشق شکرې تیرې تر گلو کړې
نور لذت به لکه زهر هسې تو کړې

که دې وشي ملاقات له سرو قدو
د فاختې په څېربه کو کې په کوکو کړې

عاشقي به تېره توره در په لاس کا
ترو د صبرد سکوت په ملك به هو کړې

په انصاف و عدالت به نوشیروان شې
هر عمل به د خپل ځان په ترازو کړې

د سکندر پڅېر جهان به در څرگند شي
که سرکوز په آیینه د خپل زانو کړې

تریخ لوگی به دې د قند پڅېرنغړده شي
که صورت د عشق په اور کښې تمباکو کړې

وبه نه وینې د ترکو برندې سترگې
مگر ځان په خپلو وینو کښې سالو کړې

که یو ځلې تورې زلفې په شانه کړې
خاکستر به په چمن کې کشمالو کړې

درست جهان به قاف تر قافه معطر شي
که یو ځله شانه گډه په گېسو کړې

ستا د زلفو مار خوړلی به روغ نه شي
که افسون د مسیحا ورباندې پوه کړې

لاس و پښې دې بې زیوره ښایسته دي
څه منت به د پایلو د باهو کړې

که سوزن د ښو راوړې تار د زلفو
د رحمان د زړگي زخم به رفو کړې

٦٢

تا چې مخ د پرئ سترگې د آهو کړې
نه پوهېږم چې آهو یې که جادو کړې

دعاگو چې د چا ومرې څه ښادې ده
ته په څه زما و مرگ وته آرزو کړې

په محراب د عاشقانو کاني ووري
ته چې چین د جبین غوټه په ابرو کړې

تا چې رنگ د گلو واخیست زه پوهېږم
زرغونه به په څېره زما گنگو کړې

ستا له ډېره ډېره څوره معلومېږي
چې به ما پخپلو وینو کښې لاهو کړې

روغ به نه شې بې دیار له ښه دیدن نه
که سل پنده سپیلنې و ځان ته لو کړې

د غفلت لېچن لیمه به دې بینا شي
که د یار د کوڅې خاورې ته څښکو کړې

دا دوا که بد دوا کوې طبیبه
چې د یار په درد و غم کښې مې دارو کړې

نصیحت په عاشقانو اثر نه کا
دا محنت واړه بې ځایه بې قابو کړې

په رحمان باندې بې ياره خواب حرام دی    که يې سل پالنګه لاندې تر پهلو کړي

۶۳

که نظر په ماتو ګوډو د روزګار کړې    هومره نه دي چې حساب يا به يې‌شمار کړې
په هر غم کښې خاموش اوسه او که نه وي    د بد خواه خاطر به ښه د دوست آزار کړې
صبر ونيسه په مخ کښې که مراد غواړې    په تلوار به هېڅ و نه کړې که تلوار کړې
رضا پاسله و قضا ته فراغت شه    او که نور څه نور څه وايې ځان به خوار کړې
آزادي او کاروبار دي سره لرې    لاس له کاروباره وکاږه که کار کړې
چې پخپله يې فاني بولې رحمانه    ترو بيا څه په هغو چارو اعتبار کړې

۶۴

ولې ولې و عاشق ته نظر نه کړې    دا ګدای په ديدن ولې توانګر نه کړې
ستا دې ډيرې حيا ډير کورونه وران کړ ل    چې هېڅا وته کاته برابر نه کړې
ستا په ډير حسن مې دا عقيده نه شي    چې دا روغ وګړي واړه اوتر نه کړې
ته پلو له مخه واخله زه ضامن يم    که اورنګ د زماني قلندر نه کړې
زما هر زمان هر دم په تا ګذر دی    ته يو دم زما په لورې ګذر نه کړې
لکه ته چې دلاور زما په مرګ يې    چېرې دا رنګه رقيب دلاور نه کړې
زه د ستا په جفا خوښ يم تل تر تله    که غماز مې له دې رازه خبر نه کړې
ګذشته جفا دې واړه/جوروجفا دې آواره وي    که دا جور و جفا باره ديګر نه کړې
هغه څوک دی چې به ستا له دره درومي    که يې ته له خپله دره بدر نه کړې
سنګدلي ده هغه خلقو لره ختمه    چې يې ته په مجلس ورشې اثر نه کړې
رحمان ستا مينې رسوا کړ بارې حيف دی    چې ته هېڅ په دا خبره باور نه کړې

ځښتن لاس د سپي په سر باندې راکاږي    ته تش سيورى د مخلصو په سر نه کړې
زما هر زمان په تا باندې ګذر وي    ته يو دم زما په لوري ګذر نه کړې

۶۵

و خوبانو وته ولې نظر نه کړې    د چمن په ګلو ولې ګذر نه کړې
دا بهار چې درست جهان يې معطر کړ    دماغ ولې په دا بوی معطر نه کړې
رضا ولې په قضا سپارلی نه شي؟    دغه زهر په ځان ولې شکر نه کړې
جك زده چې په نارو د مرګ خبرېږي    ځان پخوا تر مرګه ولې خبر نه کړې
چې دې نور خلق په سر اچوې خاورې    ته پخپله خاورې ولې په سر نه کړې
پس له مرګه چې بيا مرې له لوږې تندې    ولې نن ساعت توښه د محشر نه کړې
دا ويل دې اثر کله کا په نورو    اې رحمانه په ځان ولې اثر نه کړې

۶۶

چاچې نمري وي په خپلو وينو وللي    د شبنم په څېر به تل وي سپين سپېځلي
چې صياد څخه د اوښكو داني نه وي    د هوا مرغان هيچا نه دي نيولي
هر يو مخ کله لايق د آبرويي وي    اوښكي نه درومي په مخ د هر ناولي
هر شپه به شمع څه لره ژړا کا    که يې نه وي په ژړا کې څه موندلي
چې سېلاب د عاشقۍورباندې راغل    مخلوقات په مخه لاړل لکه خلي
ما رحمان به ژړا نه کړه له خوبانو    که مې نه وي په قسمت دا هسې ښکلي

۶۷

نمر سپوږمۍ که ستا له حسنه نه شرمېږي
ترو دا رنګه ولې زېړ زرغون ښکارېږي

دا سپوږمۍ چې يې نه سر شته نه يې پښې شته
په کوم حسن به له تا سره سمېږي

زړه مي يووړ ستا د مخ په روڼا زلفو
بارې غل په سپين سبا کله پټيږي

خم ابرو يې د پناه د زلفو تم شو
د لړم لشه له مار سره تاوېږي

که قامت دي څوک شمشاد بولي غلط دی
د لرګيو په نرخ سپين زر نه يافتېږي

و سپين غاښو ته دې در ويلی نه شم
کاڼي کله د بريښنا په دود ځلېږي

ستا د زلفو د ابريو له وحشته
همګې لړم ماران دي چې وربېږي

مخ دي اور خط دي سبزه ده زه حيران يم
چه سبزه په اور کښي څنګه زرغونېږي

اور اوبه سره چا ګډ ليدلي نه دي
دا قدرت دی ستا په لبوکښي نمائيږ ي

لکه لوند زوړوکی تاو کړې نو يې وځي
ستا له غمه مي رنګ زېړ پوست مي وچېږي

سپوږمۍ هم دا هسې تاو خوري ستا له مخه
چې په هره مياشت کښي دوه دوه نيمه کېږي

ستا قامت که څوك شمشاد بولي غلط دی
د لرګيو په نرخ سپين زر نه يافتېږي

خم ابرو يې په پناه د زلفو تم شو
د لړم لشه له مار سره تاوېږي

باريك خط يې زلفو لاندې کړ رحمانه
مورچګان د شپې له مخه پايمالېږي

۶۸

صبحدم چې هغه ياررا بانديې راشي
عجب نمر د نمر د پاسه هويدا شي

ښکلي مخ لره حاجت د سينګار نشته
بې ترتيبه چې نمر وخېژي روڼا شي

چې يې ووينم له ورايه پورې نښلم
لکه پيښ چې و بله کاه و کهربا شي

ما له ډيرې ناچارۍ و يار ته شا کړه
ناروا د ضرورت په ځای روا شي

زه په وصل کښي خواري د هجران ژاړم
د هر کار فکر تر کاره لا پخوا شي

لا پخوا تر جدايی نه ژړا بويه
ګنه هلته هر يو ژاړي چې جدا شي

وصال نه دی چا په سرومال موندلی
مګر غاړه په دا کار د چا ادا شي

زه به سرومال د يار تر نامې ځار کړم
دا په عشق کښي سهل کار دی که په دا شي

د رحمان په اوښکو هسې رنګ پوهېږم
چې آخر به په تمام جهان رسوا شي

۶۹کر د ګلو کړه چې سيمه دې ګلزار شي
اغزي مه کره په پښو کښې به دې خار شي

ته چې بل په غشيو ولي هسې پوه شه
چې همدا غشی به ستا په لور ګذار شي

کوهی مه کنه د بل سړي په لار کښي
چېرې ستا به د کوهي په غاړه لار شي

ته چې هر چا ته په خوارو سترګو ګورې
لا رومبی به ستا صورت تر خاورو خوار شي

آدم زاد په معنا واړه يو صورت دی
هر چې بل آزاروي هغه آزار شي

که ته نه کوې نظر د چا و عيب ته
هر سړی به ستا د عيبو پرده دار شي

دهقان کر په لوړه زمکه باندې نه کا
سرکوزي کوه چې ښې دې مرغزار شي

د مات لوښي آواز کله ثابت خيژي
د هر چا عمل څرګند په خپل ګفتار شي

نن چې صبح ده روښانه لار صحيح کړه
ناګهانه به دا صبح شب تار شي

لږ يې مه ګڼه که هر څو ګناه لږ وي
چې لږ لږ وبله جمع کړې بسيار شي

که بل بد کاندي ته ښه ور سره وکړه
هر يو نخل چې ميوه لري سنګسار شي

تل و ښو وته آزار د بدو رسي
هر چينجی و نرم چوب و ته دوڅار شي

هغه زړه به له طوفانه په امان وي
چې کشتۍ غوندې د خلقو باربردار شي

خدای دې بد له لاسه نه کا او که وي هم
د رحمان دې له کل بدو استغفار شي

۷۰

هر وګړی چې منصور غونډې په دار شي
روغ صورت که روغ عالم لره کمال دی
هر ګیاه چې و کمال ته ورسیږ ي
نری باد به یې په خپل منزل داخل کا
غفلت هېڅ مناسب نه دی په سپین ږیریو
چې یو موتی ایرې ناز په آئینه کا
کریمانو سود موندلی دی په زیان کښې
خزانه په سخاوت سره زیاتیږي
مړول د وږې ګیډې مشکل نه دی
کم خوراك، سړی نژدې کا فرښتو ته
صافدلانو لره لږ نصیحت بس دی
غلبه د عشق بهانه د حسن غواړي
د توفیق له مخه هر مشکل آسان دی
ناز د حسن پرورش مومي له عشقه
بې محنته چا راحت موندلی نه دی
عاشقانو لره واړه سعادت دی
یاره! یاره! هر څوك وایي په جهان کښې
لکه ډار دا کاندي ورغومی له ګرګانو
د رحمان دا پوچ ګویي څه پکار نه ده
۷۱
تبسمې د وګړي په روزګار شي

له ده وزیږي د ده د وړاندې ومري
که یې هر قدم د مړیو په سر لار وي
د ژوندیو نصیحت پرې اثر نه کا
د امید مزی یې هسې رنګ دراز وي
سپینه ږیره په اورنې کښې زوی راواخلي
د خرما زړی نهال کا ورته ګوري
هر هر فصل چې ترې ریبي هوسیږ ي
لا یې لپه تخم هم نه وي کرلی
غړوندی د نازوکړیو خسیو غړي
لکه وړکی کتوری غواړي له زانې
چې هرګز په عمر نه وي چېرې شوی
هلکانو غونډې پاس په کوټه څغلي
په زحمت د تن له مالګې هم پرهیز کا
د ژوندون په تیریدویې نظر نه وي
رحمان څه دی چې به پند و چا ته وایي
۷۲
چې شهید د تورو سترګو په خنجر شي

دار یې پس له مرګه نخل میوه دار شي
لیوني لره کمال دی چې سنګسار شي
سر یې زمکې وته کوز وي نګونسار شي
که څوك پاڼه د خزان غونډې طیار شي
صحبدم که ځناور دي هم بیدار شي
هم په دا خبره فخر د خاکسار شي
لکه ښاخ د ونې وتراشې باردار شي
د کوهي اوبه چې وکاږې بسیار شي
مړول د وږیو سترګو مشکل کار شي
هر سړی چې بسیار خور شي بسیار خوار شي
د ګوهرو پیوستون په نري تار شي
توره شپه په عاشق زلفې د خپل یار شي
و ستیوته د اورلمبې ګلزار شي
هسې نه چې د خوبانو په سنګار شي
د وصال خوښي د هجر په مقدار شي
که یې سر و مال د یار تر نامې ځار شي
زه به پس له مرګه وایم چې یار یار شي
هسې رنګ له جدایۍ نه زما ډار شي
عاشقي په ګفتار نه شي په کردار شي

چې له مرګه یې نه ویره نه یې ډار شي
چې یې نه له خدایه ویره نه یې ډار شي
لا یې مینه د دنیا په کار و بار شي
یو قدم هسې وا نه خلي چې په لار شي
مګر مړ ه له قبره پاځي په ګفتار شي
چې تر خضره ورته خپل عمر بسیار شي
چې به ما لره سپاهي و منصبدار شي
چې دا سیوری دا میوه به مې پکار شي
چې به ګانده راته بل فصل تیار شي
ناکشته ور ځنې طمع د خروار شي
چه سبا بیګاه به ما لره ګوهار شي
په دا هسې پوچ ګویي یې اعتبار شي
د هغو ناشدنیو امیدوار شي
خو چې دوه قدمه اخلي نور حصار شي
هغه نه کا چې له نهي پرهیزګار شي
چې دا ګنج به مې له لاسه تار په تار شي
هدایت د هر بنده په کردګار شي
چې را یاد یې سپین رخسار دراز مژګان کړم

عندلیب خاطر مې الوزي په ګلو
هغه دم مې زړه سپند سینه مجمر شي

که یار سل ځله جفا را سره کاندي
که د ترکو سنبل زلفې یې شهپر شي

د ناصح په نصیحت به منع نه شم
زما کله په جفا د یار باور شي

د رقیب او زما صلح سره نشته
که هزار ځله مې ورور و برادر شي

صبوري او قراري له ما خطا دي
که مو چېرې لاس و دست و بله بر شي

تېر ساعت به د هیچا په لاس کښې نه وځي
تر هغه ساعته پورې چې محشر شي

خوبرویان به د سپوږمۍ توکړه را واخلي
مګر تللی آشنا بیا په آشنا ور شي

خوشنودي یې د سرو شونډ و په کوثر شي
که رحمان کچکول په لاس کښې قلندر شي

۷۳

چې غبار دا ستا د لارې په خوا ورشي
که په دواړو سترګو ړوند وي مبصر شي

تازه نوی سر پیدا کړي لکه شمعه
چې یې غوڅ د ستا په مینه د زړه سر شي

چې کیمیا د قناعت یې په لاس کښېوزي
که ګدای وي د قارون په څېر توانګر شي

ستا د در ګدایان واړه بادشاهان دي
خو چې ستا له دره ووزي در په در شي

تل یې مخ وي له عالمه جار وتلی
د هغو چې ستا په مخ باندې نظر شي

که د درست جهان له حاله خبر دار وي
چې تا ویني له واړو بې خبر شي

ائینه که د جمال کړې ور څرګنده
دا ګدای رحمان به شاه سکندر شي

۷۴

که دې غم د درست جهان تر زړه چا پیر شي
دلګیر مه شه هسې وایه چې به تېر شي

غم هغه دی هر چې څېرمه وي و چا ته
وړومبی واړه تر وروستیه پورې هېر شي

بې له خدایه چې مدام په یوه حال وي
سړی کله شیرشاهي شي کله سېر شي

یو آدم دی چې په څو رنګه جلوه کا
یو رقم دی کله زورشي کله زېر شي

د دنیا چارې مدام په قرار نه وي
د بنو په ځنبول کې به بل پېر شي

په لږ عمر کښې ډېر غم له کومه راغی
خوله خپلې بې صبرۍ په سرې ډېر شي

خریدار و فروشنده چې سره خوښ شي
په سودا کښې سختي نه کا تېر و بېر شي

ښایسته په جهان ډېر دي بې حسابه
بارې څوك به د رحمان د یار پڅېر شي

۷۵

له دې کته له پوزیه خو به ولاړ شي
ترو بیا خدای خبر چې کوم خوا ته به لاړ شي

په ظاهر صورت خو هسې معلومېږې
چې به خس غوندې تر پښو لاندې لتاړ شي

دا آسمان زمکه به وي او ته به نه یې
په ودانه ودانۍ کښې به په ویجاړ شي

د بهار د ګلو عمر مدام نه وي
عندلیب غوندې به پاتې په اهاړ شي

په ویلاړ ویلاړ به ځان ور پسې ورك کړې
چېرې نه وي چې د ترکو په ویلاړ شي

که لیلا غواړې رحمانه دا ()بایده دي
چې مجنون غوندې ساکن د کوه و کاړ شي

۷۶

که د زرو مېږو سر وي خو چه مړ شي
که هیچا پېرکړی نه وي په جهان کښې

راشه راشه دا ډېر ناز و کبر مه کړه
و اجل ته لکه خر په خټه پړ شي

دا رخسار چې دې روښان تر آینې دی
یاره څو به دې دا ناز په جهان وړ شي

مراد خو واړه دلبرۍ دې غزا وشوه
عاقبت به د لحد په خاورو خړ شي

نیکنامي له نیك خویی نه پیدا کیږي
که د سروې پڅېر څوك په قامت لوړ شي

عاشقان چې پښیمانیږي هغه نه کا
دغه چاره نه په سوك نه په لوړ شي

دا خو زه له شفقته تا ته وایم
هغه سوك د بې هنر وي چې خپړ شي

د هوا په نغوته مه ځه که دانا یې
ګنه ځان له سرنوشته په چا زغړ شي

وران به نه کاندي یو حرف د خپلې برخې
د هوا ویشتلي غشي سر په ځوَړ شي

په تدبیر به د تقدیر کښلي نور نه کړې
که په اوښکو د چا درست جهان چقړ شي

په رحمان باندې بې یاره صبر ګران دی
د قسمت علاج په عقل کله کړ شي

۷۷نه یې نوم په خوله څوك اخلي نه نومړ شي
لکه زهر چه دیده دانسته نغړ شي!

هغه دم چې زړه ملال شي
یو ساعت ور باندې کال شي

حیران تللی وي په فکر
فراموش یې قیل و قال شي

نه یې ګفت نه یې شنود وي
په غوږ کوڼ په ژبه لال شي

نه جواب و چا ته کاندي
نه یې غوږ د چا په سوال شي

علم عقل ځني لاړ شي
درست صورت یې خواب و خیال شي

په رڼو سترګو ویده وي
لکه نقش د دیوال شي

قوت یې ویني د ځګر وي
هم دغه یې اشتغال شي

د چشمانو له بارانه
په رخسار یې پشکال شي

په سبب د عاشقۍ
تېر تر آل و تر عیال شي

هم ترآل و ترعیاله
هم تر مال و تر منال شي

په خپل درد و په خپل غم کښې
تر عالمه فارغ بال شي

نه طاقت نه یې مجال وي
بې طاقت و بې مجال شي

که ژوندی وي په جهان کښې
د مرده و په مثال شي

په خشکۍ کښې ماهي ګوره
هسې بې تېغه حلال شي

پاڅطدای نه شي له ځایه
په زړه غوځ په تن کهال شي

د ویشتلیو په څېر یون کا
له کل خلقو په دنبال شي

لکه خس د لویې لارې
تر قدم لاندې پایمال شي

خدای له غمه سړی ژغوره
بیا لا ګوره چې خوشحال شي

چې د زړه ویني شي وچې
نورژوندون یې په اشکال شي

د باغبان سترګې کا سپینې
چې تازه نخل و نهال شي

روئیدن د کښت آسان دی
پرورش یې لوی جنجال شي

ویراني په یوه دم شي
وداني په ډېر اشکال شي

چې پلار ومري بیا لا بویه
چې یې زوی با کمال شي

څوك خبر دی له دې دوره
چې په ما بهپیښ څه حال شي

چې په حال کښې یې حال نه وي
څه امید په استقبال شي

د یوه ساعت له مخه
په مثال کښې لکه سوری

ددنیا چارې فاني دي
اعتماد په اوبو مه کړه

خدای زده څه رنګه احوال شي
د بڼو په څنبولکښې

رفت آمد یې په یرغال شي
که بادشاه د ولایت وي

په ثواب يې غلط مه شه — شال شړۍ کا شړۍ شال شي
په کمال يې مه نازېږه — کنډولی په لاس کنګال شي
د هاتيانو سوداګر وي — په يوه ساعت وبال شي
جوهري وي جوهر پلوري — په يوه ګړۍ زوال شي
کلالي و ګل کاري کا — بيا د ګاو و خر دلال شي
په هستۍ کښې يې اشراف وي — خاورې اغږي کلال شي
د ځوانۍ په وقت کښې شير وي — فروشنده د مات سفال شي
چې مشهور په صداقت وي — په نيستۍ کښې يې ارزال شي
محتسب وي احتساب کا — د پيرۍ په وقت شغال شي
نيکو کاره نيک افعال وي — پوچ ګويي واخلي بطال شي
سر نوشت د سړي ګوره — کوټوالي واخلي کوټوال شي
چې نيك بخت وي نيکويي کا — بد کردار و بد افعال شي
لاس و پښې د هغه نيسه — يو عيسی وي بل دجال شي
په هجران نا اميده مه شه — چې بد بخت وي بد سګال شي
په حرامو کښې اميد کړه — چې خوشخوی و خوش خصال شي
کافر وباسي له کفره — خدای قادر دی که وصال شي
تور بهتر کاندې تر سپينو — ګوندي مخ دې په حلال شي
آرزومند د يوه خس وي — په يوه ساعت ابدال شي
چې سيالي يې کړې نه وي — په سپين مخ باندې تور خال شي
چې په عمر مفصل وي — خداوند د ملك و مال شي
ممکنات به منع نه کا — له سيالانو سره سيال شي
چې د خدای رضا شي پېښه — په ساعت کښې اتصال شي
فال به څه ګورې رحمانه — که څوك سل ځله سنبال شي
خوا و شا د هر ديوال شي — رمل پاتې د رمال شي
چې استاد يې په غربال شي — خپل افعال د سړي فال شي

٧٨

هر چې ستا په زنخدان کښې يې منزل شي — لکه خس په تناره کښط به جلبل شي
چې څوك نوم د ستا د شونډو په خوله واخلي — که يې زهر وي په خوله کښې هم عسل شي
زه په هجر کي بي برگ و بي نوا يم — لکه کښت چې اوبه نه مومي شډل شي
په عاشق باندې ګمان دا هسې مه کړه — چې يار زړه ور څخه يوسي تش ګوګل شي
په جهان تر آشنايۍ خوارږه څه نشته — ولې حيف چې هجران په کښې حنظل شي
په خپل حسن باندې مه نازېږه ګله — دغه رنګ به دې په دوو ورځو بدل شي
زه رحمان بې ياره هسې شول و شل شم — لکه کب چې بې محيطه شول و شل شي

٧٩

که سل ځله هم کنار و هم بغل شي د دنیا په مینه واړه سره بیل شي
دا چې اوس په یوه کور کښې سره ناست دي عاقبت به یې جدا جدا منزل شي
دا گلونه چې یې ځای دی په دستار کښې همه واړه به تر پښو لاندې غوبل شي
دا پی مخي چې یې مخ د نمر په څېر دی تور ویښته به یې په مخ باندې ځنګل شي
دا شیرین شیرین شربت چه د وصال دي د هجران په وقت به زهر هلاهل شي
ما د یار په بیلتانه کښې دي لیدلي که دانا د زمانې وي مبدل شي
پښه له ویرې د وصال په ځمکه نږدي چې خبر د جدایی په دل دل شي
د دې هسې رنج علاج به څوك په څه کا چې نه فهم د چا رسي نه اټکل شي
که د غرونو په سر ګرځي سر یې ټیټ وي هر چې زړه یې د خوبانو یرغمل شي
د رحمان خاطر غمونو هسې ړنګ کړ مګر جام د میو ناب وي چې صیقل شی

٨٠

که د زړه په وینو رنګ د چا ګوګل شي چې بېلتون په جهان شته دی خو به بیل شي
که د اوښکو په دریاب باندې یې نهال کړې نیشکر به نیشکر شي نل به نل شي
مشقت د سړي واړه حبطه دی په ښوره کښې کله ګل بوټی نهل شي
د دنیا یاري دوستي څه پکار نه ده له اوله یار و دوست وي پسې غل شي
که هر څو یې و بله مهر و محبت وي نهایت سره په جنګ و په جدل شي
په مثال د دروغژني مرغلرې آب وتاب یې په دوه ورځې کې بدل شي
که یې زنه دځوانی په وقت کښې سیب وي هغه سیب یې په پیری کښې بیا حنظل شي
د رقیب له بده خویه به څه وایم ترو دا ګوره چې لا یار ور سره مل شي
زه رحمان په ښه و بد د یار پوهېږم کاشکي زهر په دهن د چا عسل شي

٧۶

هغه زړه چې خدای روښان کا جام د جم شي په داجام کې ور ښکاره تمام عالم شي
په آدم کښې د حیوان خویونه هم شته بیا هاله یې آدم بوله چې آدم شي
چې خویونه د چارپایایو په کښې نه وي سړي هوښ په سړي هله مسلم شي
چې اغوستی یې لباس وي د پاکانو د ناپاکو چارې کاندي خو به ګرم شي
که هر څو طعام لذیذ وي مزه نه کا چې یوه ذره نمك یې زیات و کم شي
ښادي هر چېرې د غم په اندازه وي د هغو به څه ښادي وي چې بې غم شي
هر چه خپله رضا پاسلي و قضا ته که هر څو په ځان ناخوښ وي خوښ خرم شي
عاشقي چې تر کماله ورسیږي د خپل یار له لاسه زخم یې مرهم شي
که په ځان باندې قدم کیږدي رحمانه نه فلکه به دې لاندې تر قدم شي

٧٧

چې مجنون غونډې يو موټى استخوان شي
په قوت د عاشقۍ به پهلوان شي
عاشقانو په شكست كښې برى بيا موند
دلته توان د هغه رسي چې ناتوان شي
زيرى رنګ د عاشقانو هسې مرتبه ده
چې آفتاب غونډې ځرګند په درست جهان شي
له چشمانو يې باران د رحمت ووري
زرغونه يې په چهره باندې زعفران شي
له رخساره حال د زړونو معلوميږي
له بهاره نيك و بد د كال عيان شي
له نكتې نه تمام علم حاصليږي
درست خروار له يوه مشته نمايان شي
پكار نه دي مخالف هزار تقريره
موافق له حاله نيم كلام داستان شي
لكه مې له كار و باره وي وتلي
د هغو خاورې په سر چې غافلان شي
كه دې ډېر عمر پكار دى غفلت مه كړه
په اوده باندې سل كاله يو زمان شي
د غفلت بنياد د اوښكو په موج خيژي
يو ځځويكى خواب آلود لره طوفان شي
ړوند په خپله عصا پريوزي و كوهي ته
خپل دليل د كم دليل د ځان تاوان شي
سر كشي د عاجزانو پكار نه ده
هر ميړى چه وزر وكاندي پښيمان شي
موم دلان به ئي له شره لمن ژغوري
سنګدلان كه عينِ لعل د بدخشان شي
چه كيميا د قناعت ئې په لاس كښيوزي
د شړۍ په خرقه كښې بادشاهان شي
بل پوشاك يې پكار نه وي بې نمده
هغه زړه چې آئينه غونډې روښان شي
عاشقي ده تر جمله بلاو زياته
و مجنون ته ديو و دد واړه حيران شي
پرې به وركا دُر بتان د خپلو غوږو
كه يې تير تر غوږو شعر د رحمان شي

٨٣

آشنايي توره بلا ده آشنا مه شې
جدايي به دې فنا كا فنا مه شې
درد و غم به دې د زړه ولې كا غوځې
ګرفتار په درد و غم د جانا مه شې
په زيړ رنګ به دې تل سرې اوښكي بهيږي
د دو رنګو په ځېر ګل د رعنا مه شې
هم په دا چې دروغژن د خداى دښمن دى
و هيچا ته دروغژن په وينا مه شې
كه اعلى مرتبه غواړې عاشقي ده
نور همه واړه ادنى دې ادنى مه شې
خپل ځربښت و هر ځاروي وته قصاب دى
توانايي د تن تاوان دى توانا مه شې
هميشه به سر نګون په فكر ناست يې
د رحمان په ځېر مشغول په ثنا مه شې

٨٤

د عاشق بې خپله ياره قرار نه شي
بې طبيبه قراري د بيمار نه شي
چې په لوح محفوظ كښې ليونى وي
په تعليم د معلم به هو ښيار نه شي
زوى د پلار په غيږ كښې پروت وي روح يې لاړ شي
د قضا علاج په مور و په پلار نه شي
د خپل پلار په غيږ كې پروت وي روح يې واخلي
د هغو چې خداى كمال حسن روزي كړ
هېڅ نقصان يې د منكر په انكار نه شي
درد و غم د عاشقۍ چه ډير مشكل دى
هېڅ سړى دي په دا رنځ ګرفتار نه شي
زه همه عمر له خدايه دغه خواست كړم
چې دې يار له خپله ياره ازار نه شي
يار له يار سره جفا كا هسې ډېره
چې هېڅ فرق يې د اغيار او د يار نه شي
كه هر ځو يې دلبري و دلجويي كا
د رحمان په تركو هېڅ اعتبار نه شي

٨٥

د سکوت په تیغ چې ژبه بریده شي
لا قلم غوندې په قال کښې دویده شي
هومره اور د عاشقیه په زړه یوسي
چې لاله یې له تربته دمیده شي
خم ابرو د یار مې نقش په لیمه دي
لکه میاشت چې په لوي بحر ګښې لیده شي
همیشه یې د خپل یار په لوري دو وي
نهایت چې په دا دو کښې رسیده شي
څه حاجت دی چې زه یار و چا ته ستایم
کار همه د خپلو سترګو په دیده شي
کله وي چې یو د بل په ویل غولېږي
مګر صافه د چا خپله عقیده شي
خود څرګند وي لکه صبح په جهان کښې
هر ګریوان چې په یاری کښې دریده شي
ابرویې د عاشق هلته ځان څرګند کا
چې یې نم د زړه له سترګو چکیده شي
د آه غشي یې په زمکه کله لګي
هر قامت چې کمان طوره خمیده شي
بې مطلوبه یې هېڅ فهم په چا نه وي
هر طالب چې په طلب کښې فهمیده شي
هر چې زړه په مهرویانو باندې بایلي
بې دیناره و بې درمه خریده شي
ما د یار په څېر بل مخ نه دی لیدلی
مګر پس چې له نن ورځ آفریده شي
یا به شهد یا به قند یا به نبات وي
هر کلام چې له رحمانه شنیده شي

۸۶

چې سړی له بله بد وایي بد ګوی شي
لا تر بل پخوا روان د ده بد بوی شي
مرده شوی چې هوس کا د بل و مرګ ته
بل هم پس دده له مرګه مرده شوی شي
دوست د ښمن د سړي واړه خپل عمل دی
هم په دا مقدار یې اجر موی بموی شي
هره ونه چې کږه په یوه لور وي
عاقبت یې پریواته په هغه سوی شي
په لویی کښې نور څه نشته بې زواله
هلکان د هلکتوب په سبب لوی شي
د اوبو اصل له خاورو پیدا کیږي
خاکساري د خاکسارانو آبروی شي
همره زیان له خوګه خرسه نه رسیږي
لکه څوك په آدمیانو کښې بد خوی شي
سړي هوښ چې د سړي له تنه پاځي
د سړیو په جامه کښې خربشوی شي
و هغو وته چې خدای پخپله وښود
څه حاجت یې د رحمان په ګفتګوی شي

۸۷

وقت د عیش و طرب تېر شه خزان راغی
ځانکندن د بلبلانو په ځان راغی
دلداري مې ترې امید وه باري څه کړم
هغه یار د دلبرانو په شان راغی
سود سودا د عاشقۍ که نفع مند وای
ما هېڅ سود په کښې ونه لید نقصان راغی
تمام عمر که وصال ؤ همره نه و!
لکه یو زمان د ښکلیو هجران راغی
آشنایي مې په هوس وه خو چه بیل شوم
دواړه لاس مې و بله ومښو ارمان راغی
ګوی زما د زړه یې یووړ په چوګان کښې
بیا د ناز په نیلي سور په جولان راغی
غنچه لب چې په خندا کاندي پریشانه
په شیبو زما د اوښکو باران راغی
د میرزا د ارزاني دعوې به پرې کا
قدر دان د شاعرانو رحمان راغی

۸۸

په اول کي تا د عشق وهلي لافي
هغه لافي دې اوس ولې کړې خلافې
اوس خپل سر ورته محکم نیولی اوسه
چې د غم مصی دې ځان ته کړې خلافې
سپین چلتار په یوه ټکي بد نمای شي
د ارزالو چارې مه کړه که اشرافې
بې تمیز خو معرفت کولای نشي
ته کره او کوټ معلوم کړه که صرافې
ځان دې ولې بې حیا کړ بې حجابه
چې پټ کړی دې د مینې په غلافې
که دا هسې لویي غواړې لویي داده
که په اصل کي منصور غوندې ندافي
ددوران له فسادونو امان غواړه
که په عقل د خپل فکر موشګافي

د تقصير سبب يې کوم دی رامعلوم کړه
کوم صفت به زه رحمان د ستا بيان کړم
٨٩

يا دا ستا چشم و ابرو وينم په خواب کې
يا په جام کې ستا د مخ عکس ليده شي
يا تر خط لاندې غوټۍ ستا د خولو دي
يا دې زلفې په مخ دواړه را خورې کړې
يا دې زلفو په مخ توره تاريکي کړه
يا دا ستا مژګان زما په ځيګر خښ دی
يا خو ستا له غمه غرق زما صورت دی
ته د دې رحمان خطا کړه ور معافه

چې د يار د مخ کاته له ميانه ووزي
٩٠

ستا د مينې ګوهر نشته په هر آب کښې
که ته وينې زما پټې خښې دلبره
په هر ځاي چه ستا د لبو نوم آغاز شي
له خسته زړونو به څه دلستاني کا
زه حيران د ستا د وروځو په تور خال يم
ګل له ډيرې باريکۍ په شبنم خور شي!
د بهار په ګلو اوري بارانونه
د رحمان غلطي وبخښه اې خدايه
٩١

زړه مې بايلو ستا په مينه محبت کښې
لار زما و يار ته مه تړه ناصحه
که صورت د هغې مستې در څرګند شي
که د عشق تر کمر غاښ به بايلې
زه توبه په هغه تير عمر وکاږم
د آشنا د مينې پټ به را مات نه شي
له ادبه يې و مخ ته کتی نه شم
په قيامت که څوك له نيته پوښتيده شي
د درګاه په خاك نشينو يې تل سختي نه وي
لکه زه چې يې د در په خاورو خوښ يم
د درګاه په خاک نشينو به يې تل سخ وي
د دنيا له دولتونو بې پروا يم

٩٢

مين وژنې بې له جرمه نا انصافې
په کامل صفت موصوف په کل اوصافې

يا مستان دي وېده شوي په محراب کې
يا خو تندر تجلی کا په حباب کې
يا کوکب دی را ډوب شوی په شهاب کې
يا سنبل دې کجک شو د اور په تاب کې
يا خو تندر ځان څرګند کړ په آفتاب کې
يا سيخونه دي پېيلي په کباب کې
يا خسنۍ دی جاروزي په ګرداب کې
د اوترو چاره نه وي په حساب کې
د رحمان به څه عزت وي په حساب کې

مګر بيا موند شي د اوښکو په درياب کښې
رنګ د لبو دي ګواهي دی په دا باب کښې
د لاله و باران اوري په حباب کښې
د خراج ګنجايش نشته په خراب کښې
کافر څه شکل سجده کا په محراب کښې
نازک زړونه بدوي په صاف ځواب کښې
د څڅوکي طاقت نشته په حباب کښې
د اوترو چارې نه وي په حساب کښې

عاشقي دې زهر راکړه په شربت کښې
ما موندلی دی دا يار په ډير محنت کښې
عقل وهوش به دي هېڅ نه وي په صورت کښې
ته چې ما ته غاښ چيچې په نصيحت کښې
چې صرف شوی دی بې ياره په غفلت کښې
که مې سر له تنه درومي په دا پت کښې
خدای را پېښه جدايي کړه په وصلت کښې
زه د يار د کوڅې خاورې يم په نيت کښې
دغمونو دخل نشته په جنت ګښې
خوښ به نه وي سلطانان په سلطنت کښې
د غمونو دخل نه وي په جنت کې
زه رحمان د عاشقيه په دولت کښې

مغرور مه اوسه د عشق په کار و بار کښې — هر خسنړي تېره تبغ وي په دا لار کښې
دا سور ګل به دي دستار په وینو سور کا — چه دي اینبی زماني دی په دستار کښې
مخ د ترکوچه تر آب حیات صاف دی — زه دې آب حیات سوی یم په نار کښې
چې اوسپنیزه آیینه پرې اوبه کیږئ — ترو زما هستي یې څه ده په دیدار کښې
په هر وار چې یې زه سترګو ته نظر کړم — لاس مې وللي دي له ځانه په هر وار کښې
یاره ته چه له ما صبر و قرار غواړې — عاشق کله وي په صبر و په قرار کښې
که مې سر و مال د ستا په مینه درومي — زه تر سر و ماله تېر یم په دا کار کښې
هېڅ صرفه مه کړه د زړونو آزار اخله — که د چا سود روزي شوی په آزار کښې
عشق د عقل په کوڅه استوګه نه کا — چا موندلی نه دی یار په دا دیار کښې
ستا له دره له درباره به وا نه وړم — څو و نه مرم ستا په در و په دربار کښې
کمبختان د یار په وصل کښ مهجور وي — د وچ ډکي بهره نه وي په بهار کښې
مفلسانو لره عین کوهستان دی — که همه عمر یې کور وي په بازار کښې
و هغو چې خدای حقبیني سترګې ورکړې — د یوسف تجلی ویني په دیوال کښې
و عیب جوی ته واړه عیب څرګندېږي — ښایسته که ځان یوسف کا په سنګار کښې
چې هنردعاشقئ یې خدای نصیب کړو — بې هنره نور څه نه ویني په یار کښې
دا داغونه د خپل زړه ور لره بس دي — څه حاجت دی د رحمان په لاله زا ر کښې

۹۳

مدام ناست یم وچ ګوګل سترګې په نم کښې — عشق را وښود بحر و بر په خپل حرم کښې
ما چې زخم ستا د تورې په خوله ښکل کړو — نور مې دا لذت بیا نه موند په مرهم کښې
خوار مجنون چې سر په پښو د لیلې کېښود — سر فراز شه په عرب و په عجم کښې
زورآور مدام غالب وي په کم زوري — زه له نوره غمه خلاص یم ستا په غم کښې
لکه زه چې مستغرق یم ستا په غم کښ — بل به نه وي په جمله بني آدم کښې
لکه مړی د ژوندیو تر میان پروت وي — هسې بېل یم له عالمه په عالم کښې
هېڅ صحت مې د دم ګرو په دم نه شي — هم په دا چې زما دم دی ستا په دم کښې
نه مې بې تا تګ و پو نه جست و جو شته — مراد مې ته یې په هر دم په هر قدم کښې
که نصیب مې شي کوغالی ستا د سپیو — وبه نه کړم نور نظر په جام د جم کښې
زړه مې هسې ستا په زلفوپسې ورك شه — لکه غوټه د چا پریوزي په تور تم کښې
سره په وینو د سرو ګلو په څېر زانګي — هزار زړونه ستا د زلفو په هر خم کښې
زه رحمان کناره خوښ یم له عالمه — بارې ستا سترګو رسوا کړم په عالم کښې

۹۴

هسې بې یاره خفه یم په جهان کښې — چې مې نه شي ځاي په مځکه په آسمان کښې
سره ګلونه د چمن راته سور اور شي — چې قدم بې یاره کیږدم په بوستان کښې
چې یې مړ نه یم له ډیرې بې نیازیه — حیرانیږم د ناتوان صورت په توان کښې
که هر څو فکر له ځانه سره وکړم — هېڅ د صبر طاقت نه وینم په ځان کښې
هیڅ ساتنه د سر کښ خاطر را نه شي — څوك ساتلی شي بڅري په ګریوان کښې
تر هغه به بل نادان په جهان نه وي — چې څوك مهر وفا غواړي په نادان کښې
که یې سل ځله په ځار و قربان بولم — غوږ رانه باسي په ځار و په قربان کښې
هسې رنګ زما په ډیره ژړا خاندي — لکه ګل د پسرلي خاندي په باران کښې
جوهري شي در و لعل کاندي برسېره — چې مې کښېني د دوو سترګو په دکان کښې
چې مې هېڅېرې په خوا په خاطر نه و ! — زماني راته څرګند کړه په زمان کښې
چې په وصل کښې یې اوښکې نه وچېږې — ترو به حال د رحمان څه وي په هجران کښې

٩٥

د بلبل له حاله زده کړه په خزان کښې — بیا د ګلو تماشا کړه په بوستان کښې
څو دېتېره تلخایي تر ستوني نه شي — شیریني به خوند در نه کا په دهان کښې
ما په هجر کښې لذت د وصال بیا موند — له یوسفه ملاقي شوم په زندان کښې
لکه متن له معنی معنی له متنه — یار هم هسې دی زما په دل و جان کښې
عاشقي آسانه مه ګڼه خبر شه — سر بازي ده هر نفس په دا میدان کښې
د ناتوان له ناتوانیه وویریږه — که هزار ځله توانا یې په خپل ځان کښې
هم هغه به پس له مرګه آزارېږي — هر چې بل آزاروي په دا جهان کښې
په رحمان باندې بې یاره هسې حال دی — لکه حال زندانیانو په زندان کښې

٩٦

زړه مې ډوب ډوب کیږي ستادغم په غلبو کښې — هسې لکه څوك چه مستغرق شي په اوبو کښې
ستا د عشق له موجه هېڅ لوري وتی نشم — دواړه لاسمې پریواته د عشق په لانبو کښې
سل توبې مې ماتې کړې وا نه وښتم له عشقه — څه ویسا مې نوره پاتې نه شوه په توبو کښې
ته چې له ما درومې دا د اوښکو باران ګوره — رخ د سفر هېڅ نه دی په دا ګنو شیبو کښې
نه یوه سپوومۍ نه په آسمان کښ هزار ستوري — بې تا به څوك څه کاندي د خلقو په جنبو کښې
عشق او عقل دواړه سره ضد دي که یو هېږې — کله کړي آرام د اور بڅري په لمبو کښې
هر څوك چه د عشق په آتش ځان سیزي رحمانه — خدای ابراهیم غوندې نګاه کا په لمبو کښې

٩٧

هسې خوښ یم ستا د در په خاکستارۍ کښې — لکه خوښ وي سرداران په سردارۍ کښې
عاشقي که نورو خلقو ته خواري ده — ما موندلی دی دولت په دا خوارۍ کښې
و بیمار ته که ناخوښ وایي وګړي — خوښ یم زه د ستا د عشق په بیمارۍ کښې
د خپل بام و روزینو وته نظر کړه — هسې سترګې دې زما په بیدارۍ کښې
یار د یار له سترګو اوښکې پاکیزه کا — تا جاري کړې زما اوښکې په یارۍ کښې
ما له ډیرې ناچارۍ و یار ته شا کړه — سړی عذر دی په ډیره نا چارۍ کښې
غم به هېڅ یوه هوښیار خوښ کړی نه وای — ما خوښ کړی دی ستا غم په هوښیارۍ کښې
د رحمان اوښکې به څه رنګ په قرار وي — چا لیدلی دی دریاب په قرارۍ کښې

٩٨

سپین مخونه تور کودی شي په پیری کښې
سم قامت وي کوږ لرګی شي په پیری کښې

لکه شمع د سحر آفتاب د ژمي
هم بې تاب و هم زیری شي په پیری کښې

یو طرف ته یې سر رېږدي بل خوا درومي
خپل صورت تمام پردی شي په پیری کښې

د مرده و په حساب وي غزا وشوه
که څرګند لیده ژوندی شي په پیری کښې

مړ لا ښه دی پس له مرګه بیا ژوندی شي
نشته دا چې څوك زلمی شي په پیری کښې

که څه وخوري لکه زهر نه هضمیږي
نه څه ښې نه څه خوږی شي په پیری کښې

دا ځواني ده چې څه اوري یا څه وینې
نه لیده نه اوریدی شي په پیری کښې

اې رحمانه پیري هسې‌عاجزي ده
که رستم وي زړه پرې سوی شي په پیری کښې

٩٩

چې وصال د خپل جانان مې دی موندلی
ګنج د درو د مرجان مې دی موندلی

همره طمع مې له خپله بخته نه وه
نه پوهیږم چې څه شان مې دی موندلی

که په ډېز مشقت لاس لره خدای راوست
زه خو وایم چې آسان مې دی موندلی

چې مې یو نفس وصال ور سره وشه
واړه اجر د هجران مې دی موندلی

څه عجب دی که تمام جهان زما شي
چې بادشاه د درست جهان مې دی موندلی

زه رحمان په خپل اشعار شکر ګذار یم
چې دا هسې رنګ دیوان مې دی موندلی

١٠٠

ما چې سترګې و ګلرخ ته واړولې
په هغو سترګو مې وینې وژړلې

د عمل جزا یې بیا مونده برحقه
دا دستور دی چې کرې هغه اخلې

تر غمزو یې یو په سله زړه قاتل دی
تل چړې تورې په کاڼې تېرولې

خودکرده به څه تاوان له چانه غواړي
چې یې غوڅې په خپل تیغ کړې سپینې خپلې

مادا مرګ داستا په مینه کې هاله لید
چې ګدای د بادشاهی لافې وهلې

له خوبانو به څوک څرنګ وفا غواړي
سروې کله کشمشي مېوې نیولې

په دربار یې سنډاسې شه ورته کښېنه
تار په تار د سر وېښته ایرې مبتلی

که دفتر د خپل قسمت د چا په لاس وای
بدې برخې به چا کله قبلولې

چې نیکې یې ورکوله و نېکانو
دې بدانو څه بدې نه وه غوښتلې

څوک له خاورو ایرو پاڅوې تخت ورکړې
څوک له تخته د ایرو په ډیران ولې

ستا چې نیت د آشنایي نه و صنمه
د رحمان سترګې دې ولې نه ګنډلې

د ازل په ورځ د برخو جواري وه
اې رحمانه چا بایلودې چا ګټلې

١

یوځل ولېدای د یار پرېشانې زلفې
په عارض باندې حلقه پېچانې زلفې

که تورتم لري ظاهر سیاهي د زلفو
حقیقت لري سفېدې روښانې زلفې

دا قدرت الهي دی راشه ګوره
د دانا د ګردن طوق ناداني زلفې

هم په څېر یې د خپل ځان په زړه حیران کړم
په اورړو د یار پرتې حېرانې زلفې

په شمیم د خوشبویي یې زه خوشبو شوم
خدای دې نه کا په خپل داد پښېماني زلفې

په کوم لورې به زه سر ترېنه وکاږم
و ګردن ته مې پرتې رېسماني زلفې

ځکه ژاړم له دوو سترګو اوښکې وینې
چې رحمان وینې د یار خنداني زلفې

٢

بد لوې په دنیا دین و ایمان ولې؟ — نه پوهیږې په خپل سود و په زیان ولې ؟
همیشه په ځای د شکر شکایت کړې — منکرېږې په عطا د سبحان ولې؟
در بخښلی خدای د هرې چارې توان دی — په ډېر توان کښې خپلسر بولې ناتوان ولې ؟
مدام اوښکې تویوې د رزق له غمه — در گوهر په بها پلورې ارزان ولې ؟
چې په هر بیگاه سامان د هر سبا کړې — کور و کر شوې د محشر په سامان ولې ؟
هېڅ گیاه له ځایه نه خوځي نم مومي — ته د رزق په طلب مړې جهان ولې؟
چه پخوا تر قضا خپله رضا غواړې — بیهوده په لوټو ولې آسمان ولې ؟
په ژوند ومره چې د مرگ له غمه خلاص شې — آسان کار دې کړو په ځان باندې گران ولې ؟
غیرې مینې دې په زړه باندې انبار کړې — په کعبه کښې ننباسې بتان ولې ؟
زړه د نفس په پیروۍ در څخه لاړ شه — د خبیث په لاس دې ورکړ قران ولې ؟
چې یوسف د حبشې په بها مومې — د مطلوب په بها نه ښندې ځان ولې ؟
بد له بدوپښیمانې کاندې رحمانه — ته په خپلو بدو نه شوې پښیمان ولې ؟

٣

په نور څه پسې بې خدایه ژاړې ولې ؟ — د چارپای په څېر بې ځایه ناړې ولې ؟
چې روټۍ میده کوې په شخوند خو جوړ یې — ترو خبرې کوې لواړې لواړې ولې ؟
ته دا خپل کلام میده په دا خپل شخوند کړه — تا داړلو ته تیرې کړې داړې ولې ؟
هغه کار چې دې په نرم ویل کېږي — بیهوده په بیرته نولې لاړې ولې ؟
نیك له نیکو بد له بدو مناسب دي — نیك و بد وبله په بله نغاړې ولې؟
یو قدم د خدای په لور اینبودی نه شې — تمامې عمر په پرته لاړې ولې؟
تل دې طوق د تعلق په غاړه کښېوست — وکښنای نه شې دغه طوق له غاړې ولې ؟
چې په ورځ د شیخۍ لافې کړې رحمانه — په شپه می له می فروشه غواړې ولې ؟

۴

ته چې خپله بې عقلې هوښیارې بولې — کاشکې بیا مومې د غوښتو په نرخ شولې
عشق یو داد دی په عاشق باندې له خدایه — هسې نه دی چې یې پیرې یا یې پلورې
زلیخا غوندې به بله شیدا نه وي — که د مصر مستورې شې واړه ټولې
هغه بحر څه په بحر حساب نه دی — چې اوبه یې خاك آلودې وې ختولې
له هغو سره به څه فکر د یار وي — چې په غم وې د کاله یا د کهولې
عاشقې څه د نغرې په غاړه نه شې — څو په یار پسې وانه خلې ځلې زولې
د وصال په نعمتونو غره مه شه — جدایې یې خلقې کړې په زړه ځمولې
در گوهر په تله نه دې چا تللې — د رحمان شعر گوهر دی څه یې تولې

۵

هسې ډوب یم ستا د غم په دریاب تللی — زه رحمان یې هر دم وینم ستا په غم کښلی
ما لیدلې چې لینده دې وه را کښلې — چې ماهې غوندې بې تیغه یم کوټلی
په خپل ځان مې تر هغه پورې نظر و — تا د ورځو په لیندو یم زه وېشتلی
اوس مې ستا په مینه ځان و جهان هېر شه — څو مې ته په نظر نه وې کښیوتلی
عاشقې به یې د باد په مخ بنه کا — د سیلاب په مخ کښې لاړم لکه خلی
چې د عشق له بحره روغ سلامت ووزی — که چا ځان وي کوه قاف غوندې نیولی
هر چې واوړي په بلا د تورو زلفو — زهې نن گنم له موره زېږېدلی
چې له غرونو پرېوتلی وي بیا پاڅې — هغه بیا تر کوره نه دی ورغلی
چې د اور لمبو وهلی وي بیا روغ شي — پاڅېدای نه شي له زړونو پریوتلی

نه رغيږي د آزار لنبو وهلی
که خپل مرگ په سترگو نه دی چا ليدلی

زه د ستا له غمه ژاړم واړه ويني
واړه ويني واړه ويني واړه ويني
خود مي ويني چي په تش کاته دې مرمه
لا خنجر په کاني مري دل سنگيني
هر زمان مي په حضور د سترگو وژني
لا يقين دې د زړه نه شي بې يقيني
عالم ستا په مينه ژوي نه پوهيږم
زه په څه سبب وژلی يم ستا ميني
ډير عالم به نمري رنگ کا معلوميږي
تا چي هسي جامي واغوستي رنگيني!
پښي يې نه وي‌چي و بله خوا ته درومي
هسي سکني په غمزه د عاشق سپيني
که صورت مي پر بله پوري معلوميږي
زړه مي ستا له غمه چاود دی نازنيني
هغه څوك دی چي تر تا به بهترين وي
ای تر واړو مهرويانو بهتريني
چي دې زلفي د رحمان په زړه وريځ کړې
تر بنو يې ځکه څاځي اوښکي ويني

٨

خدای دې وژغوره له هرې پريشانۍ
اي زما د کور و کلي ودانۍ
عاشقي چي ما گڼله دانايي وه!
اوس خبر شوم له دې خپلي نادانۍ
تر ورخ تېرې اوبه بيرته نه جار ووزي
څه پکار دي پوچ بې ځايه پښيمانۍ
وداني په يوه دم کښي شي ويرانه
مرد هغه چي کړي د وراني ودانۍ
لکه باد چي ځان وهي له کوهه دشته
زه په تا پسي کوم سرگردانۍ
دا خو زه د ستا د غم سره لوڅيږم
څوك له ديوه سره کړي پهلوانۍ
چي په آب و په آتش په خاك و باد وي
څه اميد دی په هغې زندگانۍ
ته چي دا رنگي اوږدې اوږدې وعدې کړې
کشکي راکړې و ما خط د امانۍ
زه او ته که هغه وقت وای چا به نه وای
د مجنون او د ليلی قصه خوانۍ
زما ستا و ننداړو ته به حېران و
که ژوندي وای آدم خان او درخانۍ
و هر چا وته چه وايم حيرانيږي
څه به وايم د رحمان له حيرانۍ

که يې هر زمان په آب زمزم وينځم
بې مئينه مي په زړه باندې غبار وي
څو يې سل خاره خښ نه شي په تيږ کي
کله وي چې د بلبل و گل ته لار وي

هر چې کښت يې په باران و په سيلاب وي
د هغو عمر به واړه په عذاب وي

هغه ملك چې په كښې سيند و رود بار نه وي
دهقانان به يې‌همه خانه خراب وي

و آسمان ته به يې سترګې وي ختلې
د باران له انتظاره به بې خواب وي

لكه څوك چې كړوي يې په كړَهئ كښې
د هغه ماهي په طور به كباب وي

لا به كله بارانونه پرې نزول شي
چې نخيل او زراعت به يې سيراب وي

هميشه له خدايه خواست د اوبو كاندي
كه يې چېرې خواست په عمر مستجاب وي

لكه تل چې يې په زوړ د اوبو غوړ وي
هومره غوړ يې نه په چنګ نه په رباب وي

كه همه عمر با ران ور باندې ووري
لا ګرمي ئي په صورت كښې د آفتاب وي

د ګرمئ او د خشكيو له دهشته
د آفتاب په څېرګمان يې په ماهتاب وي

د اوبو له ډيرې ډيرې قيمتئ نه
لرګي لوښي يې مردار په منجلاب وي

فرق د پاكو د ناپاكو اوبو نه كړې
كه اوبه يې ګډې وډې په پېشاب وي

د اوبو په غلا چې ور شي نه جار ووزي
كه ساكن د خانقاه او د محراب وي

د اوبو په ويش چې ورشي انصاف نه كا
كه په لاس يې ورقونه د كتاب وي

د اوبو ثواب يې نه كېږي له لاسه
كه په ګوټ اوبو يې عين د حج ثواب وي

د باران اميديې نه‌كېږئ له خدايه
كه يې شپه و ورځ په سر باندې سحاب وي

پليتي به يې له تنه څه رنګ درومي
چې اوبه په كښې نايابې تر ګلاب وي

چې د نوكو وچولو په ځاى ورشي
تر تنځري ځان بتر كا كه عقاب وي

هېڅ يې مه پوښته له غسله له اودسه
چه يو څاڅكى پرې ګوهر غوندې ناياب وي

په سبب د ډيره ډيره تيممه
هميشه يې سپيره ږيره په تراب وي

د للمي سړي په مخ كې وي آب چېرې
هغه خلک چې بې آب وي خو بې آب وي

په آبئ كښې لا هم وي خونه ويرانه
هغه كلى چې د بل كلي پايئناب وي

يو به نه سي هيڅ برى له سرى ورخه
پايئناب سړى كه زوى هم د ارباب وي

سم حساب له عزيزانو كله مومې
تل تر تله يې د بل لاندې حساب وي

نه طاقت د بد ويل لري نه صبر
لكه مار په ملا وهلى پيچ و تاب وي

نه يې مرګ نه يې قتنه له لاسه كېږي
لاس تړلى د خپل شرم به طناب وي

چې يې زيست يا يې روزګار په تحمل شي
هميشه يې له بديه اجتناب وي

كه يوه بده وينايې له خولې ووزي
هغه دم يې په خپل ځان باندې عتاب وي

يو هغه سړى تيرى ورباندې وكړي
چه په عمر نه د سوال نه د ځواب وي

همسايه وي چريكار د پښتانه شي
او په اصل به موچي يا به قصاب وي

ملايم ويل اثر ور باندې نه كړي
چې په زړه كښې يې نه شرم نه حجاب وي

لكه ديو وي د سړيو په صورت شي
ته ګمان كړې چې سړى وي دى دواب وي

په هيڅ رنګ له بده خويه نه جار ووزي
هسې مست د جاهليه په شراب وي

چې اشراف د هسې خرښو په لاس كښېوزي
نو خلاصى به يې له خونه په كوم باب وي

هسې رزق دې خداى هيچا لره ور نه كا
كه به رزق د چا په هسې رنګ اسباب وي

تر دا هسې زميندارو هغه ښه دى
چې نوكر د يوه تور كافر كلاب وي

نوكري د يوه سپي ور لره ښه ده
هغه پرېږده چې لا نوم يې د نواب وي

د خشكئ له غمه قوم د رحمان خوښ دى
كه رفتن‌يې له جهانه په شتاب وي

١٠

تل دې ستا د خواب آلودو سترګو خواب وي
چې فتنه/فتنې په خواب‌اودې شي ډېر ثواب وي

لکه مې چې په مینا کښې تجلي کا
نور د حسن په حجاب کښې بې حجاب وي

ته چې ما ته لولوې پټې د صبر
زه هم ډېر په دا راضي یم که مې تاب وي

زه په دا سبب په ترکو پسې ژاړم
چې ژړا د عاشقانو د مخ آب وي

که نادان وي هم دا همره خو پوهېږي
څوك چې نه ژاړي په یار پسې کذاب وي

د عاشق سترګې په دا سبب شوې پاکې
چې مدام د جوې په سر لکه حباب وي

له خالي خونې به څه وړي چې څه نه وي
که ختلی د حباب په سر سیلاب وي

هم په دا یې د نغمې اثر پیدا شه
چې په تشه ګېډ ه صبر د رباب وي

د حریص له خپله نقده بهره نشته
لکه مار د ګنج د پاسه پیچ و تاب وي

کاملان تعلقات د دنیا نه کا
لکه پاڼې د خزان پښه په رکاب وي

غفلت هېڅ مناسب نه دی په دنیا کښې
ساکنان د خرابات واړه خراب وي

چې ښادي غواړې بې شماره بې حسابه
په رحمان به د غمونو څه حساب وي

١١

د هغو چه وبله مهر و محبت وي
په هستې او په نیستې کښې فراغت وي

عاشقي ده تر هغه مقام په‌هور ته
چې د چا مقام په رنځ یا په راحت وي

څه د اور په لمبو سوی څه په واورو
واړه عشق دی که هجران وي که وصلت وي

چې مطلب و مدعا د سړي خدای شي
ناست ولاړ یې همه واړه عبادت وي

که په دوه قدمه ومري هم حاجي شي
چا چې کړی د مکې په لوري نیت وي

هغه څوك چې پیروي د اولیا کا
دا یې واړه په معنا کښې ولایت وي

که د زرو په تخت کښېني غزا وشوه
وفهیم وته کم فهمه بې عزت وي

خاوري زر په سړي واړه برابر شي
هغه دم چې له جهانه په رحلت وي

د دانا او د نادان تر میان یو حد دی
هوښیاري تر حده په‌هورته حماقت وي

تجاوز له خپله حده پکار نه دی
د هر چا په خپله خونه کښې حرمت وي

نور عالم که د دنیا غمونه کاندي
د رحمان سره دې غم د آخرت وي

١٢

د هغې بنا چې نوم محنت آباد وي
ترو خاطر به په کښې څرنګ د چا ښاد وي

په خواړه او په څښو کله ویني نیسي
هر مرغه چې په قفس کښې د صیاد وي

د رنځور په خوله کښې کله مزه کاندي
که سل رنګه نعمتونه یې معتاد وي

پاي بسته وو لره هر چرته زندان وي
هغه هر چېري آزاد دی چې آزاد وي

عشق تغییر او تبدیل نه لري یکرنګ دی
د آشنا له لاسه داد وي که بیداد وي

د ښادی نښه هغه وي په جهان کښې
چې په یار پسې بې بیخه و بې بنیاد وي

بودنې هغه باله شي په معنا کښې
چې د تن په نابودۍ یې اعتقاد وي

نقصاني وي د دنیا عمارتونه
که ترې لاندې یې سل ستنې د فولاد وي

زندګي که څوك پوهېږي حضور دم دی
آینده و رفته کله د چا یاد وي

دا دنیا لکه سیلاب هسې بهېږي
نه یې چا څخه استوګنه نه استاد وي

چې کامله اراده لري په زړه کښې
د مرشد له اشارته بې ارشاد وي

و هغو ته چې خدای خود پخپله وښود
څه حاجت یې په ښوونه د استاد وي

چې کامله اراده لري په زړه کې
د مرشد له اشارته بې ارشاد وي

ډېر یاران ورڅخه بیل شو هېڅ ګرم نه دی
که رحمان له جدایي نه په فریاد وي

۱۳

په دنیا کښې که هر څو و بله پیوند وي
پس له مرگه به یې درست صورت بند بند وي

زه به وخورم په دا باب هزار قسمه
که باور دې په قسم و په سوگند وي

یا به وړاندې تر تا درومي یا د وروستو
که دې وروړ که دې عزیز که دې فرزند وي

زمانه به یې تر پښو لاندې پایمال کا
که په قطع تر اسمانه سربلند وي

هم یې هسې پیمانه ګڼه په خاورو!
که دی ډکه خوله تمام عمر په قند وي

هر چې کاندي آزادي په دا جهان کښې
پس له مرگه به همه واړه په بند وي

هر چې غاړه یې و حق ته ایښې نه وي
همیشه به یې په غاړه کښې کمند وي

دا چې زه و تا ته وایمه که خدای کا
په آیت وپه حدیث کښې به څرگند وي

ته چې نه کوې باور په آیاتونو
ترو زما ویل به څه در لره پند وي

ناپسند به د منکر په انکار نه شي
هر کلام چې دلپذیر و دل پسند وي

خدایه گنج د قناعت و رحمان ورکړې
چې بې ملکه بې حشمته دولتمند وي

۱۴

که د درستې دنیا غم مې په سر بار وي
واړه سهل د ی که یار را سره یار وي

هزار واره به یې د یار تر نامه ځار کړم
که په قطع مې دا یو صورت هزار وي

هغه نه دی په شمار د عاشقانو
چې د خپل ټټر داغونه یې په شمار وي

مشکل کار د عاشقۍ چې خدای پیدا کړ
کله بل په جهان هسې مشکل کار وي

څو ئې اوښکې په مخ لارې روغې نه کا
د هغو و معشوقو ته کله لار وي

ته چه گل زما د یار په شکل غواړې
کله دا رنگه گلونه په گلزار وي

نه مونده شي به بازار کښې نه په ښهر
هغه رخت چه د خوبانو په بازار وی

زه د یار په څېر مخ نه وینم په سترگو
که په هره خوا خوبان هزار هزار وي

د عاشق نظر په ډېر و په لږ نه وي
که دیدن د یار په لږ که په بسیار وي

شته هزار هزار خوبان ولې سوگند دی
که زما د یار په څېر به د چا یار وي

مرگ لههېچا سره وار نه کا رحمانه
یار به ځان تر یار وړنبی کا که په وار وي

۱۵

له هغو سره به څه فکر د یار وي
چې یاران یې په هر لور هزار هزار وي

په آشنا پسې ویشتلي هم هغه وي
چې له نوري آشنایۍ یې استغفار وي

صبوري او قراري دې په ما زوږ شي
که بې تا به مې یا صبر یا قرار وي

هر ژوندون د یار په وصل ښایسته وي
بې مئینه که ژوندون وي څه په کار وي

که د یار له لاسه اور په یار بلېږي
هغه اور و عاشقانو ته گلزار وي

په یارۍ کښې آزار نشته خدای دې نه کا
که ذره به زما زړه له تا آزار وي

و هغو ته عاشق نه ویلی بویه
چې یې فکر یا د سر یا د دستار وي

ځای یې اور شي چې زنار یې شي په غاړه
ولې نه چې ستا د زلفو زنار دار وي

ستا د زلفو زنار دار که په اور سوځي
دغه اور به هم ربنتیا ستا د رخسار وي

هغه جونه به لیلې غوندې رسوا شي
چې رحمان غوندې مجنون یې په دیار وي

۱۶

که د ستا د خاطر مینه په اغیار وي
ستا دپاره دې اغیار هم زما یار وي
هر سړی چې په یو مخ باندې مئین شي
له یوه مخه یې سل مخه پکار وي
هر چې کاندي نوکري د پادشاهانو
خواه مخواه به د دربانو منت بار وي
زه به ستا له رقیبانو څه ماڼه کړم
دا دستور دی چې له ګله سره خار وي
څو سل خاره یې خښ نه شي په تېر کې
کله وي چې د بلبل و ګل ته لار وي
سجاده به د ساقي د لارې فرش کا
هر صوفي چې د سرو سترګو خریدار وي
په جذبه د عاشقۍ به لیونی شي
که په قطع افلاطون غوندې هو ښیار وي
په رحمان باندې به هېڅ ملامت نه کا
هر سړی چې ستا له حسنه خبر دار وي

١٧

د وصال په هوا والوتی مرغه شوای
د هجران په اور کښې درست صورت اوبه شوای
نه وزر کا، له هوس، نه مري له غمه
سړی سخت دی ګنه یو اثر پرې وشوای
زړه که چاودای هم له دې غمه به وچاود
چې د یار د بیلتانه خواري په زړه شوای
د رقیب و ناکړدو ته چې نظر کړم
د عاشق له آهه ړوند په تور لیمه شوای
هېڅ پوره به دې نیمګړې نه شي خدایه
که بیلتون د دوه یارانو و بله نه شوای
چې بېلتون ددوه یارانو وبله کاندي
د هغو خلقو له مرګه واورېده شوای
خدای رضا لره چاهسيتعویذ وکړای
چې لړ زه د هغه یار تر فهمه ښه شوای
یوځل یار په سترګو ولیدای چې دا دی
دغه پسه هر چې شولای بیا هاله شوای
نوم یې یو ځل زما واخیستای په ژبه
نور مې نوم په دا جهان کښې پاتې نه شوای
لکه درست عمر په خوله د رقیب کار کا
دغه هسې یو زمان زما په خوله شوای
زه رحمان په دا خبره حق حیران یم
نه پوهېږم چې د یار له غمه څه شوای

١٨

چې په مخ باندې د اوښکو یو رقم وي
عین چې د تورو له پرهاره سره سم وي
که ګریوان مې د سپوږمۍ د نمر مشرق شي
زه چې یار په سترګو نه وینم تور تم وي
دلته سر پورته کول د چا رسيږي
چې پخپله د یار زلفې خم در خم وي
کړو ورځو غوندې نېش وهلی نه شي
که په زړه د پاسه پروت د چا لړم وي
معشوقه چې د عاشق په غم وي غوځه
د عاشق سترګې دې ووځي چې بې غم وي
همدمي د دوو همدمو هسې بویه
چې د دواړو زندګي په یوه دم وي
که د درست جهان ښادۍ ور باندې راشي
مه کړه خدای چې څوك بې یاره خوښ خورم وي
بل ستم د بیلتانه د پاسه نشته
که لیدلی چا په سل رنګه ستم وي
دا قضا څه تر قاضي موقوفه نه ده
خود پخپله یار تر یاره پوري ګرم وي
راحت هر چیرې هغو لره لازم وي
چې په درد و په محنت کښې مقدم وي
چې خوناب یې د چشمانو مې ناب شي
پیوسته له دغه جامه سره جم وي
هېڅ حاجت د هنر نشته و نصیب ته
که په اصل څوک عرب وي که عجم وي
هنر مه غواړه طالع له خدایه غواړه
بې سلېمانه په کار ندی که خاتم وي
د رحمان خندا په اجر د ژړا ده
تازګي د ګل په قدر د شبنم وي

١٩

همیشه دې زما سر و ستا قدم وي
تر هغه ساعته پورې څو مې دم وي
ستا له لاسه واړه ما لره نافع دي
که مې زهر ږدي په زخم که مرهم وي
زه بې تا هسې گمان کړم چې سفال دی
که نسکور مې په لبانو جام د جم وي
نور عالم که ددنیا په ښادئ ښاد وي
زما زړه دې مدام ښاد دا ستا په غم وي
که په زړه باندې مې سل غمونه راشي
دا ستا غم دې تر همه و مقدم وي
ما دې ستا له غمه خدای بیغمه نه کا
تر هغه ساعته پورې څومې دم وي
رحمن ستا په مخ مئین دی خدای خبر دی
که په دا کښې به هېڅېرې زیات و کم وي

خپل قسمت په سرې کاندې هرچې کاندي
د چا برخه خاموشي د چا نارې شوې

قاعده د درد مندئ هسې نه ده      چې په درد کې یو دردمن تر بله کم وي
چې بیلتون ورته اسان دی هغه خلک      ازمیښت لره په بند د بېلتانه شوای

که یې هر زمان په آب زمزم وینځم      بې مئینه مې په زړه باندې غبار وي
څو یې سل خاره خښ نه شي په تېر کې کله وي چې د بلبل و گل ته لار وي
۲۰

ته چې ما ته وایې چې په چا باندې شیدا یې
زه په تا شیدا یم وایه ته چې یار د چا یې
زه به تا په کومه زیرکئ شم پېرولی
چا زده لکه تا زده همره وایه چې څه وایې
زه چې کبرجن وم عاشقی مې گردن مات کړه
ته چې لکه وې هم هغه هسې کبریا یې
ځان که ستا په مینه کښې فاني کړم څه به وکړم
ته چې په دا هسې رنگ له آهه بې پروا یې
مرگ مې په تا ولې خدای اختر کړنه پوهېږم
څه دې حاصل هم شته که مطلق په مرگ زما یې
څه شو که یم زه انگشت نما په مینه ستا کښې
زیات له ما نه خوښ ته د قاضي هم د ملا یې
ستا د عشق تر توري ککرئ د رحمان ځار شه
دا هم سهل کار دی زما یاره که په دا یې
۲۱

هر چې په حیات صورت له مرگ سره اشنا شي
خلاص به د قیامت له خرخښو په دې دنیا شي
سخ د هغو گلو چې برگریز یې په بهار وي
گل سرابښي وکا له خزانه استغنا شي
غم هم که چې هېڅ غم ورسره نه وي
ولې چې ناگاه به یوه ورځ وربانديي زیبا شي
حکم د نیستی په هغو دی چې هست دي
هرچې هستي پرېږدي له نیستی یې څه پروا شي
زړه د عاشقانو د دښمن له لاس بېغم دی
لکه شمع د مقراض له خصومته په خندا شي
لوړه تنده نشته د قانع په قناعت کې
دا کیمیا چې زده کا په خرقه کې امرا شي
هېچا سرچشمي حاصلي نه کړې په خرمن کې
بلکه د قحطي په ملک که شاه یې که گدا شي
ما به ربښتیا نه وې ای یارانو بارې څه کړم
حقه کلمه نغږده هر گور سخته بلا شي
زورور سېلاب واړه ترل په مقامات وي
زړه د خاموشی په ځای لره چې گویا شي
بې خس و خاشاکه د آتش بقا په څه وي
آه و فریاد واړه په مقدار د تمنا شي
زه د رقیب چارو ناویسا کړم له حبیبه
زلفې په نسبت د مار خوړلو اژدها شي
ای رحمانه هر راحت په اجر د رحمت دی
هرچې دېرخاندي هسي دېر ژړا شي

په پښتو کې رحمان ووې
په فارسي کې سنایي
۲۲

چې پخته شي آشنایي
تر میان ووزي جدایي

و طالب وته وفا شي د مطلوب بې وفايي
بادشاهي کاندې بدله د ديدن په ګدايي
خاني پلوري په اوربشو ميرزايي په ميزرايي
نظر نه کاندې هېڅرې په لويي په بډايي
ورته کفر ځرګنديږي خودبيني او خودرايي
خودرايي په عاشقي کښې له عاشقه نه ښايي
معشوقې که بې وفا دي عاشقان خويې ستايي
غوږ يې کوڼ سترګې ړندې وي د خپل يار په خطايي
که يې کړي وي سل علمه هم ديني هم دنيايي
همه واړه فراموش کا چې پرې ورشي شيدايي
و مطلب ته نه رسيږي په شيخي په ملايي
آواره ننګ و ناموس کا په سر واخلي رسوايي
تر ناموسه ورته به شي بې ننګي، بې نوايي
هره چار يې په اخلاص شي نه په روی و ريايي
قبلوي په دواړو سترګو هرچې يار پرې فرمايي
نصيحت پرې اثر نه کا که ځوک سل ځله وايي
فايده نه لري په عشق کښې د داناو دانايي
مشکل کار ده عاشقی آسان چېرې دی بايي
دغه کار کولی نه شي هر کم فهم و کجايي
هر کم بخت يې کله مومي د دلبرو همتايي
څه په کسب مونده نه شي دغه کار دی عطايي
چې د عشق په لومه کښېوزي نور يې نه وي رهايي
بې د يار له مخه نه شي دعاشق دلکشايي
د خپل يار په طلب ګرزي غاړې غرونه پيمايي
له عالمه وي وتلی لکه صيد صحرايي
تل تر تله يې وطن وي ګوشه کنج و تنهايي
مدام سوی لوغړن وي د خپل آه په ګرمايي
هر زمان يې په اور نيسي د خپل يار تمنايي
نه يې ملک و نه يې مال وي نه يې زهد و پارسايي
په دا هسې ګرانو چارو! معشوقې يې ازمايي
په يوه ديدن يې يوسي د درست عمر کمايي
هم مې هسې رنګه وژني ياره ستا بې وفايي
چې په زړه کړم زړه مې چوي دغه ستا خود نمايي
هم خودې لري بې قياسه هم د حسن زيبايي
ضررنه لري بې نفع ستا د ميني سودايي
ستا سودا ما لره سود دی حق به وايم خدايي
په هېڅ مخ کښې ليده نه شي ستا د حسن صفايي
نمر به څه له تا سيالي کا په دا بې سروپايي
ادراک نه رسي د سروې ستا د قد په رعنايي
لکه ستا قد و بالا دی نشته هسې بالايي

که د ستا وصال دریا وي        زه ماهي یم دریایي

د مګسو زندګي ده        په دکان د حلوایي

زه طوطي شکر پرست یم        دا ستا شونډې میټایي

دا ګمان په رحمان مه کړه        چې بې تا به وپایي

۲۳

که په قطع د تمام جهان ملک یې        چې له ځانه خبر نه یې لا هلک یې

که په قطع د تمام جهان ملک یې        چې له ځانه خبر نه یې لا هلک یې

آدمیت خو څه په مال او په شال نه دی        ته چې خیال په شال په مال کړې ځکه سپک یې

منصفان دي د انصاف خبرې وایي        څه شو څه شو که په خپلو کي شریک یې

که د لمر په څېر څرګند شې په جهان کي        څو په زړونو پسندیده نه شې لا ورک یې

بزرګي په دلجویي کي ده د خلکو        ته چې خلک ډوبوې څرنګ به بزرګ یې

په لویۍ کي لویي چېرې ده لایقه        کمینې و ته مټ کړه که سالک یې

فلک تا غونډې پیدا کړي بیا فنا کړي        ته لا نوی خواست کوې په ناز نازک یې

دانایان به په دېوان ښکلي پند اخلي        چې رحمان په خوار نظر ګوري فلک یې

څوک له خاورو ایرو پاڅوې تخت ورکړې        څوک له تخته د ایرو په ډېران ول یې

۲۴

مست د هغه مخ یم چې مستاني لري سترګې        بې توري، بې تېغه، قاتلاني لري سترګې

بې لیدو کتو غایبان زړونه وړي له خلکو        هسي چشمان بندي ساحراني لري سترګې

هرڅوک چي یې ویني نورې سترګې کتی نه شي        ښکلي پریوارغونډې حیراني لري سترګې

لب آب حیات دي او نفس یې د عیسی دی        هېڅ عجبي نه دي که خوباني لري سترګې

هر چي عاشقان دي هغه کله بل خوا ګوري        واړه ستا په لوري نګراني لري سترګې

ای رحمانه اوشکي هم له تخمه د باران دي        کښت د هغه شین شو چي ګریاني لري سترګې

۲۵

خو زما په ورمیږه ماتول شېر یې        که په مرګ د رقیب هم هسې شمشېر یې

مرګ خو وینې چې پخپله را پسې دی        څه محتاج زما و مرګ وته ډېرډېر یې

کبر و خیال خو لا له ځایه ستا عادت و        او که نن زما له قصده په بل پېر یې

دا بې شماره عاقلان به شي کم عقل        ته چې دا رنګي په زړه وښکه دلبر یې

ستا خویونه به پخپله ځان څرګند کا        زه به څه وایم چې ته تر بلا تېر یې

له حیرته دې تعریف کولی نشم        چې په څه رنګ دې ستایم د چا پڅېر یې

ما چې‌ستا د لبو خوند بیا موند محظوظ شوم        که سل ځله په ترخه ویل ګندهېر یې

د جهان ښکلي که واړه د رحمان شي        خدای دې نه کا چې یې ته له دله هېر یې

۲۶

په یوه زره به وړی یا به موړ یې        په یوه ذره به ګرم یا به سوړ یې

که ځواني له خدایه غواړې ځوان به ومرې        او که بس له ځوانی پایي خو به زوړ یې

سړی کله خویا جوړ کله ناجوړ وي        څه خدای نه یې چه به تل تر تله جوړ یې

عاشقي به دې آسمان غونډې څرګند کا        که مجنون غونډې هرڅو په صورت ووړ یې

بدي واړه په ښه ونیسه رحمانه        چي پای بند د یار په مهر یا به مروړ ئي

عاشقي بې جذبې چېرې ده رحمانه        ته مجذوب د یار په مهر کښې لا ووړ یې

عبادت خو په ځوانۍ کېږي رحمانه
په پیرۍ کې به څه زهد کړې چې زوړ يې

٢٧

د زړه حال و تاته څه وايم په ژبه
ته خبر د خوږو زړونو په منزل يې

هم د ګل په څېر بلبل سېځي په مينه
هم مئين لکه بلبل هسې په ګل يې

بې ليدو د ر څرګندېږي عيب واړه
په کمال د جملګۍ چارو کامل يې

هم قاضي يې هم ملا هم محتسب يې
هم ساقي د مي پرستو په محفل يې

يو دې ذات په دواړو کونو کې شهره دی
بل په نام له هر چا لويه يو په سل يې

چې ته مخ په عبادت کې نه جار باسې
درسته شپه دې نفس بدي کا ته يې خپل يې

ورکول او پېرودل دې په خپل لاس دي
که و چا يې ورکوي که يې اخل يې

جار تر هسې رنځ نيولو شه رحمانه
چې شهی يې په پوښتنه وي راغل يې

خدای طاعت، عبادت څه کوي رحمانه
خويي مينه د سړي ده ازميل يې

٢٨

په ځوانۍ کښې بد دماغه بد ګمان يې
چې پېري دربانديې در شي بيا ناتوان يې

که په دا دې زړه ښه کېږي دا خو نشته
چې به تل تر تله ژوې هم به ځوان يې

چې هر ګز دې په لاس نه دي کښيوتوني
بيهوده د هغو چارو په ارمان يې

چې بې خدايه زړه تړ ې په نور څه پورې
هم په خدای هسې باور کړه چې نادان يې

هسې رنګ دې و هغه جهان ته شا کړه
ګويا تل به مستقيم په دا جهان يې

همره سر دې و خپل خدای وته تيټ نه دی
لکه تيټ په لور د خان و د سلطان يې

يوه شپه په طاعت نه شې رونولی
هره شپه په مال و ملك بانديې پاسبان يې

په تسبيح دې تانده ژبه وچ لرګی شه
پوچ ګويی لره بلبل غونديې ګويان يې

و نمانځه ته چې نمر خېژي هاله پاځي
په قلبه پسې په نيمه شپه روان يې

اوداسه لره کوزه اخيستی نه شې
چې په لو او په لور ورشې پهلوان يې

پټې سترګې لکه ستور په ګانۍ ګرزې
که پريوزې و کوهي ته هم دوان يې

پښيماني تر پښيمانۍ لا پخوا بويه
نه هغه چې بيا په تېر ساعت پښيمان يې

د هلك په څېر به لاس اچوې اور ته
نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان يې

چې و بل ته نصيحت کا ځان يې هېر وي
نور څوك نه دی هغه ته عبدالرحمن يې

٢٩

زه د ستا له غمه ژاړم واړه ويني
واړه ويني، واړه ويني، واړه ويني

خود مي ويني چې په تش کاته دې مرمه
لا خنجر په کاڼي مُړې دل سنګينې

هر زمان مي په حضور د سترګو وژنې
لا يقين دې د زړه نه شي بې يقينې

عالم ستا په مينه ژوي نه پوهېږم
زه په څه سبب وژلی يم ستا مينې

دېر عالم به نورې رنګ کا معلومېږي
تاچې هسې جامې واغوست رنګينې

پښې يې نه وي چې وبله خواته درومي
هسې سکنې په غمزه د عاشق سپينې

که صورت مي پر بله پورې معلومېږي
زړه مي ستا له غمه چاود دی نازنينې

هغه څوک دی چې ترتابه بهترين وي؟
ای تر واړو مهرويانو بهترينې

چې دي زلفي د رحمان په زړه وريځ کړې
تر بنويې ځکه څاخي اوبه سپينې

څوک له خاورو ايرو پاځوې تخت ورکړې
څوک له تخته د ايرو په دېران ول يې

٣٠

ورك شه ورك شه بد كردار و بد سړی | که دي ورور که دي عزيز وي که پردی
تر هغه لا نيكو كار بيگانه ښه دی | چې بد کار شي د چا زوی او يا نمسی
لرگي لوښي همه واړه پرې مردار وي | بد كردار دی سور لنډی يا وري سپی
هغه خلق به همه واړه ليوني كا | چې په كلي كښې يو سپی شي ليونی
بل علاج د ليونيو سپيو نشته | بې له مرگه چې تري ډك كاندي كوهی
حرام خور د مخنڅو په حساب وي | که په توره يا په تيغ وي‌ميړنی
ميړني ويلي بويه و هغه ته! | چې بې وجهې آزار نه کا هېڅ سړی
ديگ يې ايښی په ديگدان ړومبی تر تيغ وي | چې يې سوړ په آه سرد نه شي نغری
هسې فيض يې و هر چا وته رسېږي | چې باله شي د خپل وقت حاتم طی
ای رحمانه چې بد فهم او بد كردار شي | راته وايه سپی بهتر دی که سړی

۳۱

که له ډېره غمه دم د چا ختی | زه به مړ وم ستا په عشق كښې لرغونی
زړه مې هسې ستا په تورو زلفو بايلود | لكه ورك په توره شپه کا څوك كالی
په يوه ساعت مې رد هم مې قبول کا | نه پوهېږم چې يې خپل يم که پردی
په يو لاس كښې يې مرهم په بل خنجر دی | نه په مړيو كښې حساب يم نه ژوندی
که په مرگ د عاشقانو يې رضا ده | خدای دې ما کا تر همه واړو ړومبی
و كوم دم ته به ادراک د پاړو رسي | هر وېښته يې د كاكل شو منگری
خون بها مې د ستی په مثل نشته | ما پخپله قبول کړی دا خپل سوی
څوك دي غم زما په ډيرو اوښكو نه خوري | كم به نه کا په خوردن سره ندی
د هجران په توره شپه كښې يې وېرېږم | چې يې نه وينم د وصل سپين سپوږمی
د يار غم لكه زمری راباندې راشي | خدای دې پيښ نه کا په چا باندې مزری
چې پرې غم غلطومه د شپې پاڅم | كله مې په شونډو كېږدم كله نی
گاه كتاب كله رباب په لاس را واخلم | بارې دردمې په هېڅ رنگ نه کا كمی
همسايه مې واړه وواته له خوبه | که په سل كوټو دننه كړم زگيروی
که عاشق تر معشوقې پورې يو سپی وي | خدای د هجر په توره مه وژنه يو سپی
زه رحمان د يار په غم كښې هسې ډوب يم | چې هېڅ نه وينم په سترگو مگر دی

۳۲

چې دارو د درد و غم وي هغه مې | ساقي راكړه يو دوه جامه پياپې
مې د خپلو لبو را نه د انگورو | چې اول يې نوشيدن وي پسې قی
په هر تېغ كښې چې آب نه وي د شرابو | څوك د غم په غليم نه مومي بری
جام د ميو چې غمخوار د كل جهان شه | زه به اوسم په دا غم كې تا به كې
راشه يو ځله مې هسې مست خراب كړه | چې خبر نه شم له حاله د هېڅ شی
بې خودي هسې پناه ده زور آوره | چې له هره غمه خلاص كاندي سړی
زه هغه تحصيل تمام گڼم په عشق كښې | چې يې روغ وگړي بولي ليونی
رحمان صلحه له رقيب سره پيدا کړه | آشنا ښه دی البته خوړونكی سپی

۳۳

ډيرې خولې زما په ياد شكر خورې شوې | په دنيا كښې چې بنياد د آشنايۍ كا
يو ه برخه خدای هرچا لره وركړې | دا فلک خدای پيدا كړو دا يې خوی دی
د چندنو ونی وسوليدې لاړې | د دنيا د محلونو خښتې واړه
په هغو زمكو چې روغې پرې مانۍ وې | بيا زما په زمانه خاورې ايرې شوې

د چا برخه خاموشي د چا ناري شوې | د هجران توري هغه لره تېرې شوې
هزار ځانګې د شمشادو په اري شوې | چې و چا وته دعا چاته ښيرې شوې
د ايام په ګردشونو دېرې شوې | و رحمان ته د سرونو منارې شوې

۳۴

بوصلِ تو مارا کجا هاته هې | که وصلِ تو خيلې برې بات هې
بَکوی تو ګفتم که مسکن کنم | ولې کی مرا اين درجات هې
خمِ زلفِ تو ګوشه ابروان | دلم را عجائب مقامات هې
مکن پيش من وصف خورشيد و ماه | که از حسنت اين کم علامات هې
همی دادې دشنام و ګالي مرا | بسويم همين از تو سوغات هې
نګاهت نه امروز خونم بريخت | که دايم ترا همچون عادات هې
ز آغوش رحمن مرو با رقيب | که اين سفله بد خوی و بد ذات هې

# مخمس

## ۳۵

هغه يار چې ښايسته دی تر آفتابه | مخ به کله را ځرګند کا له نقابه
بيلتانه په زړه زهير کړم بې حسابه | يو سبب وکړې مسبب الا سبابه
چې زما ملاقات وشي له احبابه

ملاقات د ښايسته و مې نصيب کړې | د ښايست په ګلستان مې عندليب کړې
عندليب مې په ګلشن د خپل حبيب کړې | خدايه ما په دلبرانو کښې قريب کړې
و مې ژغورې د دې اهل له عتابه

هغه يار چې زه يې مينه په ديدار کړم | هميشه يې و ديدن ته انتظار کړم
شپه و ورځ پسې ناري وهم کوکار کړم | که په روی ورته تمام جهان رويدار کړم
سترګې نه پورته کوې د ناز له خوابه

بيلتانه يې پټ پنهم په زړه تاراج کړم | و ديدن ته يې په هسې رنګ محتاج کړم
چې غرقاب يې د غمونو په امواج کړم | هېڅ پاياب يې مونده نه شي څه علاج کړم
د آشنا د مينې غم شه نا پايابه

ته چې کس يې د جمله و بې کسانو | هم کار ساز يې د جمله و کار سازانو
االهي په بزرګی د بزرګانو | زه وصال په دعا غواړم د خوبانو
لا به کله دا دعا شي مستجابه

اسير کړی دې د زلفو په په طناب يم | تکبير کړی دې د سترګو په قصاب يم
د کشتۍ غوندي مدام په اضطراب يم | لکه زه چې ستا له غمه په عذاب يم
خبر مه شه هېڅ بنده له دې عذابه

دريغه مه وای په دنيا کښې پيدا شوی | او که وای هم په دا هسې شان خومه وای
لکه زه يم د هجران په لنبو سوی | څو به ګرزم د هجران په اور الوواي
چې سينه مي شوه په درست عمر کبابه

هی هی څه مي دا خراب خاطر ناښاد شه | زيست روزګار مي هميشه آه و فرياد شه
عمارت مې د زړه هسې رنګ برباد شه | چې حباب غوندې بې ښخه بې بنياد شه
د بنياد طمع به څه کړم له حبابه

پټ پټ ګرزم د ناصح له نصيحته | راته کاندې نصيحت په څو صورته
چې توبه کړم د خوبانو له قربته | هېڅ ځواب يې په ما نه شي له غيرته

در مانده ورته ولاړ یم لاجوابه
دا ځواب څه هسې‌نه دی چې په خوله شي　　د عشق راز څه هسې نه دی چې وايه شي
دا مشکل حکايتونه په ما نه شي　　د دې بحر بې پايان حساب په څه شي
چې يې زه و چا ته وايم له حسابه
چا موندلی د دې بحر پايان نه دی　　دغه راز و هر سړی ته عيان نه دی
هېڅا کړی د دې چارې بيان نه دی　　دغه واړه عاشقي ده رحمان نه دی
چې په خوله کښې در و لعل لري سيرابه
۳۶
ستا جفا د حد په هورته ده صنمه　　تل مې اوښکې موج وهي د زړه له يمه
څو به پټه دا قصه اوسي پنهمه　　هسې ډوب په فکر پروت يمه بې دمه
نه پوهېږم چې په غره يم که په سمه
که خبر وای له دې هسې رنګ خوارۍ　　ما به نوم اخستی نه و د يارۍ
ستا د غم په درياب ډوب يم تر مرۍ　　بې تا نه لرم هېڅوک د دستګيرۍ
مګر ته پخپله لاس را کړې همدمه
ما وې نوربه آشنايي له هېچا نه کړم　　هم په دا رنګه مې نيت و بارې څه کړم
د قسمت علاج په چا شي چې يې زه کړم　　که په سل رنګه تالاش و تدبير وکړم
خلاصی نه مومم له لوحه له قلمه
خوبرويان که بې وفا دي خو هم وړه دي　　عاشقان که وفا دار دي خو هم پيره دي
ستا له غمه هر چې دي زما په زړه دي　　اوس به حال و چا ته څه وايم چه څه دي
غرض دا دی چې زه ګرم يم ته ناګرمه
يو خو دا چې په صورت يې پري رويه　　هم په خوی و په خصلت فرشته خويه
هم په قد و په قامت هر ګوره لويه　　بيا به نه مومي څوك تا غوندې دل جويه
که يې غواړې په هژده هزار عالمه
ستا له غمه زه په ځان کړم هسې چارې　　چې دښنه يې وبله نه کا ګلعذارې
ته په څه سبب زما نه دل آزارې　　دا زما ګناه راوښيه دلدارې
چې توبه کړم نصوحا غوندې محکمه
لاس تر غاړه د رقيب سره خندا کړې　　چې ما ووينې له قصده راته شا کړې
خدای يې ويني هغه چارې چې په ما کړې　　تر ابدي ورځې پورې به جفا کړې
که به کله و جار ووزې له ستمه
تا چې هسې بې نيازي د ځان توښه کړه　　په عاشق دې د خندا زمکه متره کړه
بيا دې ورځ په غريبانو توره شپه کړه　　نور دا هسې د جفا خويونه مه کړه
خلقه به دې له جوره شي برهمه
ستا زما له ميني هر څوك خبر دار دي　　دا خبرې کوراکور په هر ديار دي
چې فلانا فلانا سړي سره دوستدار دي　　اوس په بيرته جار واته و ما ته عار دي
چې رسوا شوم تر عرب و تر عجمه
هغه ژوي چې په تا باندې مين وي　　په وګړي به رسوا لکه کوهکن وي
همېشه انګشت نما په مرد و زن وي　　چې دا نښې په کښې نه وي دروغژن وي
که په هره ګړۍ خوري هزار قسمه
نشانه د عاشقانو اول دا ده　　چې مدام يې سر و کار وي له فرياده
تل نامه د بدنامۍ وي پرې زياده　　نه وېرېږي له پيغوره له اهداده

بې د یار د جداییه له ماتمه

هر چې زړه یې مبتلا شي په بتانو زیست یې نه شي یو ساعت بې مهرویانو

که څوك ورکړي بادشاهي د بادشاهانو په نسبت د هغو سویو سوختګانو

دا متاع ده تر یوه خسنبي کمه

که سلیمان غوندې مسند یې په هوا وي په سبب د عاشقی به خاك پا وي

همیشه به په فریاد و په غوغا وي چې دا هسې نشانې په کښې پیدا وي

ترو هاله پرې عاشقي ده مسلمه

عاشقي دې هېڅوک نه ګڼي اسانه دا خبره ده له حده پهورته ګرانه

وصال نه دی چا موندلی بې هجرانه ته له ځان سره اتکل وکړه رحمانه

په دنیا کښې ښادي چېرې ده بې غمه